مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهٖ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ (الحديث)

دېلچرخي په ضد لا مذهبو زندان کي د اهل السنت والجماعت

او د لامذهبو (جعلي اهل حدیثو) د عقايدو او د مسائلو

په تشريح کې ليکل شوي کتاب

# احقاق الحق

## في الدفع عن المذهب الحق

مؤلف


الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني

الننجرهاري



العرفان خپرندويه علمي ټولنه

اهل السنة والجماعة افغانستان

دکتاب ځانګړنې

دکتاب نوم احقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق

مؤلف الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقانى الننجرهارى

ژبه پښتو

ټوک لومړي ټوک

کال 2015 ز

کمپيوټري چاري: عزت الله سلطانزي

پر ليکه کوونکي عزت الله سلطانزي

منته او کورودانی

له ابو محمود مولوي شر يف الرحمٰن ( حقانى ) او ملا عزيز الله څخه منته کووم چي د دي کتاب په سکن کولو کي مونږ سره مرسته کړي

تاسي کولي شي ددي کتاب نور جلدونه **PDF** په بڼه زمونږ له لاندي پتو څخه تر لاسه کړی

واټس اپ ، تليګرام او ټليفون لاندينی شميرې سره اړيکه ونيسئ

**0093706912702**

اويا هم لاندي بريښناليک او فيسبوک پاني سره اړيکه ونيسئ

**Esultanzai@hotmail.com**

**azatullahsultanzai@gmail.com**

**www.facebook.com/Ezatullah.sultanzai**

يادونه : ګرانو لوستونکو که تاسی د کوم کتاب سافټ لري مهرباني وکړي زمونږ بريښناليک ته يي را واستوی مونږ به يي په ټولنيزو شبکو او ويبپاڼو کي نشرکړو .

دنويو زياتونو سره

من يرد الله به خيراً يفقهه في الدين. [الحديث]

د پلچرخي په صليبي زندان کې د اهل السنت والجماعت
او د لامذهبو (جعلي اهل حديثو) دعقايدو او د مسائلو په تشريح کې ليکل شوی کتاب

# إحقاق الحق

## في الدفع عن المذهب الحق

مؤلف

الشيخ ابو ابراهيم رحيم الله الحقاني النجرهاري

لومړی ټوک

العرفان خپرندويه علمي ټولنه
اهل السنة والجماعة افغانستان

## د کتاب ځانګړنې:

د کتاب نوم: احقاق الحق في الدفع عن المذهب الحق

لیکوال: الشیخ ابو ابراهیم رحیم الله الحقانی الننجرهاری

زیار او تصحیح: مولوی عبد السلام ننگرهاری

اول چــاپ: ۲۰۱٤م کال

دویم چاپ: ۲۰۱۵م کال

تعـــداد: ۱۱۰۰ ټوکه

کمپوز او ښایست: مولوي عبیدالله هنر، حافظ حمزة مجاهد

د کمپوز چارې:



علمي خپرندویه ټولنه

د ترلاسه کیــدو ځایونه:

پـتـه: قصه خواني پیښور /اکوړه خټک / جلال آباد اسحاق زئی مارکیټ/ کابل پل خشتی

بریښنــالیک: abukhadeega۹۹۹۹@gmial.com

داړیکو شمېرې: ۰۷۷۳۷۱٤۱۹۱/ ۰۷۸٦۰۹۰٤۵۰/۰۳۳۳۹۳۳۲٤۰۸/۰۳۰۷۷۹٦۸٦۷۳

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# د خپرندويه ټولنې يادښت

دهرې ژبې وده او بډاينه په علمي اثارو او تحقيقي کتابونو سره شونې ده، علم او پوهه د هرچا مهم او اساسي ضرورت دی، که په يوه ژبه کې داسې علمي آثار شتون ولري چې په نورو کې نه وي نو د نورو ژبو خلک ددغې ژبې د زده کولو کوښښ کوي او ددې ژبې کتابونو نورو ته ژباړل کيږي، پدې توګه دا ژبه د خلکو ضرورت ګرځي او خامخا دا ژبه وده کوي د نړۍ ژوندیو ژبو ته نن سبا د خلکو ضرورت دی ځکه دهغو ژبو خلکو کار کړی ده او کار يې په خپله ژبه نړيوالو ته وړاندې کړی ده.

پښتو د خدمت شعارونه او دعوې ډيرې دي خو په پښتو کې دعلمي اثارو چاپولو بهير د ميږې په تګ روان ده، په ځانګړې توګه د پښتو ژبې ديني برخه کې دا کار بيخي کمزوری ده، دا اوس هم ډير داسې تکړه ليکوالان او پوهان شته چې هغوی ګڼ شمير ناچاپ آثار لري، دوی يې د چاپ وس نه لري او د مرستې يې څوک نشته، له ډيرو شکايتونو او لويو لويو دعوو د کوچني اثر د چاپ هڅه ډيره غوره ده، ځکه له زرو خبرو يو عمل زر ځله غوره دی.

"احقاق الحق" په څلورو ټوکونو کې دښاغلي مولوي صاحب رحيم الله " الحقاني" علمي اثر دی چې په ټوله کې په کتاب الله ، نبوي احاديثواوفقهي استدلالاتو بنا دی° ټولنه يې دخپلو علمي هڅو په لړکې ديوه علمي اثر په توګه چاپ ته په خلاص مټ اوږه ورکوي اودښاغلي ليکوال دغه اثر ته د درنښت او قدر په سترګه ګوري .

کتاب چې په پښتو ژبه ليکل شوی دپښتو ژبې په وده اوپرمختګ کې يې يوبل ګام بولي چې دټولنې دنورو علمي موخو ترڅنګ دپښتو ژبې دعلمي پرمختګ او ودې له موخې سره اړخ لګوي .

الحمد لله (العرفان) خپرندویه ټولنه خپلو هیوادوالو ته مهم، لوی او غوره تحقیقي اثر احقاق الحق وړاندې کوي مونږ په خپل لنډ نشراتي ژوند کې دا پنځم اثر خپلو درنو هیوادوالو ته په مینه ډالۍ کوو.

د اثر محتوی او منځپانګه ستاسو په مخکې ده، مونږ په دې لنډ یادښت کې په هغه خبرې نه لرو، زمونږ کار د یو اثر چاپ کول او خپلو لوستوالو ته رسول دي او دا لوی کار مو الحمد لله په ښه توګه ترسره او په پښتو کې دا لوی تحقیقي او علمي اثر (احقاق الحق) مونږ ستاسو درنو لوستوالو په خدمت کې تیار کړی.

داچې کتاب دلیکوال خپل اثر دی او ټولنه یې په متن کې دلاسوهنې حق نه لري، ځکه به نو دکتاب په منځپانګه او عباراتو دمعترضینو اعتراض ټولنې ته متوجه نه وي.

مونږ په داسې حال کې چې ښاغلي لیکوال ته دلا نورو علمي خدمتونو توفیق له متعال خدای څخه غواړو ، ددیني، علمي اوفرهنګي خدمتونو چوپړ خپل مسؤلیت بولو او ددې درانه مسؤلیت په ترسره کولو کې، ستاسې نېکو مشورو او علمي همکاریوته اړیو هیله ده خپلې دغه ډول همکاري راڅخه ونه سپموئ .

دبریو او لاخوښیو هیله من مو

محمد اکرم " نعماني"

د"العرفان" ټولنې خادم

۲۴ شعبان۱۴۳۶هق

بســـــم الله الرحمن الرحيم

# مُقَدِّمَة

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم، اَمَّابعد:

**محترمو لوستونکو!**

موجوده دور دفتنو دور دی. هره ورځ نوي نوي فتنې راپیدا کېږي ،یوه فتنه لاختمه شوې نوي ،چې بلې فتنې سرراپورته کړی وي، په اسلامي ملکونو باندې دلادینیت طوفان را الوتی دی کفري طاقتونه داسلام په بنیادونو باندې دهرطرف نه حملې کوي په اسلامي ملکونو کې دبې حیایی، بې شرمی، عیاشی، اوفحاشی بازار گرم دی، په دې پرفتن دورکې چې داتحاد او د اتفاق څومره ضرورت دی هغه دعقل خاوندانو ته پوره ښکاره دی. (عیان راچه بیان).

ددې حالاتو تقاضی دا وه چې مسلمانانو خپل اختلافات بالکل یو طرفته کړي وای او یهودي او صلیبي سېلاب ته یو بلاک جوړ شوي وای، په یو اتحاد یې دصلیبیت ،یهودیت، او دهریت سېلاب ته بند جوړ کړای وای، په خپلو تقریرونو او تحریرونو یې دصلیبیانو ،یهودیانو ،ملحدینو او زندیقانو مقابله کړای وی.

مگر افسوس چې په مسلمانانو کې یوه وړه فرقه چې دغیرمقلدینو په نوم سره یادېږي ،او دافغانستان عوام ورته وهابیان سلفیان، اهلحدیث، اثریان وغیره وایي، دحالاتو په نزاکت نه پوهېږي، او ددې خبرې سره یې هېڅ کارنشته چې، صلیبیانو قرآنونه بیت الخلاء ته وغورزول، قرانونه یې په ډزو وويشتل، دعیسویت لپاره دومره کار وشو چې زیات مسلمانان عیسویان شول، دمسلمانانو څخه زندانونه ډک شول، دمسلمانانو د پېغلو سره په ډله ایزه توگه جنسي تیري کیږي، په مسجدونو او مدارسو بمبارونه کېږي، دگوتتانامو ،بگرام، پلچرخي او داسې نورو زندانو کې دمسلمانانو غوښې ورستې شوې ،په زرگونو دقرآن حافظان او عالمان دصلیبیانو په دارونو را وزړول شول، او هرطرفته د مسلمانانو قتل عام روان دی.

بلکه ددوئ کارصرف دمسلمانانو په مابین کې انتشار پیداکول دی، داخلک په خپلو تقریرونو او تحریرونو کې دملحدینو زندیقینو ،صلیبیانو اوکفارو دتردید په ځای احنافو پسې بد رد وایي ،فروعي مسائل یې دکفر او د اسـلام مـدار گرزولـی دی، او دانگریزانـو دامشـن یـې ښـه پـه وړانـدې روان کـړی دی چـې ډیوائـډ اینـډ رول *(DivideAnd Rul)* په خلکو کې بې اتفاقي واچوه او حکومت پرې وکړه.

کله چې دامریکایانو لخو دننگرهار دحصارشاهي په ولسوالۍ کې زمونږ معصوم ماشومان په بې رحمۍ سره شهیدان شول، او ډېر په وینو ولمبول شول،نو د جعلي اهل حدیثو یو څو نام نهاده علماء د عبدالعزیز خیرخواه وکیل اهلحدیث جلال اباد په مشرۍ کې دامریکایانو په نمایندګۍ هلته ورغلل، او غوښتل یې چې دامریکایانو په خونخوارۍ پرده واچوي، چې دخلکو دسخت عکس العمل سره مخامخ شول، او په کانړو یې وویشتل، چې ددې صلیبي خدمت په عوض او دنور خدمت په طمعه دامریکایانو لخوا ښه ونازول شول، او مهم ریاستونه ورکړل شول، لکه دحج او اوقافو او داسې نور ریاستونه چاته یې دطرزالعمل او دعلماءو دشورۍ په نوم شوراګانې جوړې کړې، او څه یې دمرکزي مساجدو امامان کړل، او چاته یې (F.M) ایف ایم، راډیوګانې جوړې کړې، او چاته ئې مدرسې جوړې کړې، په دې ریاستونو ،شوراګانو ،مساجدو ،مدارسو او راډیوګانو کې د ناستو نام نهاده علماؤ غټ شعار دادی چې دصلیبي طاغوتیانو په خلاف جهاد حرام دی، لیکن داحنافو په خلاف فساد فرض عین دی، دفحاشۍ او عریانۍ او ارتداد په خلاف رساله لیکل او اشتهار چاپول حرام دي، لیکن دتقلید په خلاف په خلکو کې انتشار پیداکول فرض عین دي ، ددیموکراسۍ او لامذهبۍ په خلاف هرحرکت حرام دی، لیکن دامام صاحب دمذهب په خلاف اجتماع ګانې او غونډې جوړول فرض عین دي، دشهیدانو او اولیاؤ زیارت ته تلل حرام دي، لیکن دامریکایانو دیېزونو او سپینې ماڼۍ څخه طواف کول فرض عین دي، دصلیبیت او یهودیت په خلاف قلم پورته کول حرام دي، لکن درفع الیدین او آمین بالجهر وغیره مسائلو په وجه په مساجدو کې جنګونه جوړل فرض عین دي.

دغه نام نهاده علماؤ په سالانه اجتماعاتو او عامو غونډو او مجلسونو کې په ډېر شوق سره اختلافي مسائل بیانوي. داپه یادلرئ چې زمونږ ملکونو ته قرآن احنافو مجاهدینو را رسولی دی، همدارنګه درسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ احنافو تردې ځایه پورې رارسولی دی، دافغانستان خلک چې کله مسلمانان شول، احنافو فاتحو علماؤ ورته همدانبوی لمونځ وښودلو، چې لاسونه دنوم څخه لاندې تړئ، دامام پسې فاتحه مه لولئ، رفع الیدین، دیو څو ځایونو څخه بغیر په بل ځای کې مه کوئ، امین په زوره مه وایي الخ.

بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم حدیث دی چې، زما د امت د بهترو خلکو په لاس به هند فتحه کېږي، نسائي جلد ۲ ص ۵۲ مسند احمد بن حنبل ج ۵ ص ۲۷۸، مجمع الزوائد ج ۵ ص ۲۸۲. الله جل جلاله د دې وړاند وینې مصداق احناف وګرزول، دغزنوي، غوري او سوري خاندانو په لاس باندې هند فتحه شو چې ټول احناف وو، او احنافو فاتحو علماؤ د هند مسلمانانو ته همدغه نبوي ﷺ مونځ ور وښودلو، په هندوستان کې تر دولس سوه کلونو پورې او په افغانستان کې تقریبا تر دیارلس سوه کلونو پورې ټولو مسلمانانو همدغه مونځ کولو، او هېڅ دا آوازنه پورته کولو چې دغه مونځ دسنتو څخه مخالف دی، پدې دیارلس سوه کلونو کې په میلیونونو علماء، اولیاء او عوام دحج او د تعلیم لپاره حرمینو شریفینو ته تلل، هلته ورته هېچا نه ویل چې ستاسو مونځ دسنتو څخه مخالف دی په ټول تاریخ د اسلام کې یوه واقعه هم داسې نده پیدا شوې.

لیکن کله چې ملکې وېکټوریه هندوستان ونیولو نو دانګریز په دوره کې د اهل حدیثو مشرانو نذیر حسین عبدالحق بنارسي، وحید الزمان، نواب صدیق حسن خان، محمد حسین بټیالوي وغیرو. ددې متواترو سنتو په خلاف آواز پورته کړو، او اشتهارونه یې خپاره کړل چې د احنافو مونځ دسنتو څخه مخالف دی، دا اشتهارونه یې کلي په کلي تقسیم کړل. او دانګریزانو دې پالیسی ته یې چې (لړاو اور حکومت کرو) عملي جامه ور واغوستله.

## د جعلي اهل حدیثو دوه مقصده وو:

د دوی اول مقصد دا وو چې دانګریزانو په خلاف جهاد حرام دی، او ددې مقصد دپوره کولو لپاره مولوي محمد حسین د خپل جماعت له طرفه یوه رساله ولیکله په نامه د (الاقتصاد فی مسائل الجهاد) ددې رسالې په عوض کې دانګریزانو له طرفه جاګیر دار شو، بله رساله صدیق حسن خان ولیکله په نامه د (ترجمان وهابیه)

ددې رسالې په عوض کې دانګریزانو لخوا ورته ریاست ورکړای شو، او نوابي یې حاصله کړه، دا دواړه رسالې د (رسائل اهلحدیث) په اول جلد کې موجود دي.

د دوی دوهم مقصد دا وو چې دمسلمانانو په مساجدو کې د فسادونو جوړول فرض دي او ددې مقصد لپاره یې په اول اشتهار کې یو څو مسائل لیکلي وو، د اشتهار چلنج داسې وو:

دپنجاب او د هند حنفيانو ته د اشتهار په ذريعه دا وعده ورکوو چې، په دوئ کې هر يو عالم دلاندې مسائلو جواب په آيتونو يا په داسې صحيح حديث چې په صحت کې يې هيڅ خبره نوې پيښ کړي، نو د هر آيت او حديث په مقابل کې ورته لس روپۍ دانعام په طريقه ورکول کيږي.

**دشيخ الهند (رحمه الله) جواب**

حضرت شيخ الهند (رحمه الله) ددې فتنې دخاموشولو لپاره يوه وړه رساله وليکله په نامه (ادله کامله) په هغې کې ئې ليکلي وو، چې دا وخت داختلافاتو ندی دمسلمانانو په مابين کې داختلاف په ځای داتحاد کوشش پکار دی او دايې هم وليکل چې مشتهر صاحب ستا انداز دتحقيق انداز ندی، دمسلمانانو جنګول د حديثو اتباع نده بلکه ستا علم صرف دومره دی چې په حديثو کې درته صرف متعارض حديثونه معلوم دي، او په قرآن کې درته صرف متشابهات معلوم دي، دشيخ الهند رحمه الله درسالې په جواب کې د جعلي اهل حديثو له طرفه محمد احسن امروهي د (مصباح الادله) په نوم باندې کتاب وليکلو چې په دې کې کتاب کې نه آيت وو او نه حديث بلکه صرف او صرف کنځلې وې. حضرت شيخ الهند رحمه الله بيا په جواب کې (ايضاح الادله) وليکلو.

**دشيخ الهند رحمه الله کرامت:**

دشيخ الهند رحمه الله په امت مسلمه کې دامنل شوی کرامت دی چې کله احسن امروهي کنځلې ورپسې وليکلې نو الله جل جلاله ددې لامذهبه څخه ايمان واخيست، او دقاديانيت په حال کې مړشو، دنيا يې هم برباد شوه او آخرت يې هم .مجموعه اشتهارات مرزا ج١ ص٣٣٧].

نو دانتشار بنياد دغو لامذهبو کيښودلو، او چې کله افغانستان ته روسان راغلل، نو ددوئ دافتنه دلته هم را ورسيدله او اوس د انګريزانو په دوره کې پوره اوج ته ورسيدله دخپلو روحاني پلرونو سره پوره همکار دي، زمونږ دولايت ننګرهار دمرکزي مساجدو حنفي علماء يې څه شهيدان کړل او څه يې بنديان کړل، او څه د وطن څخه فرار شول او غرونو ته وختل او دهغوئ په ځای داکثرو مرکزي مسجدونو امامان جعلي اهلحديث شول، دوئ يو طرفته انګريزانو ته جاسوسي کوي، بل طرفته عوام په فروعي مسائلو کې جنګوي ترڅو چې دجهاد د درسونو په ځای پدې فساد کې مصروف وي، او دجهاد جذبه پکې سړه شي والى الله المشتکى.

کله چې زه د ځلور کاله آزادي څخه وروسته دوهم ځل په څوارلس سوه دوه د ېرشم کال د شعبان په اول تاريخ د ماښام په اته بجو دلغمان د عليشنګ په لاره کې د اسلام آباد په ساحه کې ديو مرتد صليبي (قومندان زمريالي) لخوا په يو کمين کې ونيول شوم او دظلم او د وحشت ناتار راباندې جوړ شو، دلغمان د استخبارا تو په رياست کې بيا دکابل (۱۷) او (۹۰) په رياستونو کې را څخه غوښې غوڅېدلې، اونوکونه را څخه وېستل کېدل، په وينو لمبدلی ووم، پښې مې د حرکت څخه غورزېدلې وې تشناب ته په ګنډو او ځنګلو تلم، په سترګو راته څه نه ښکارېدل، او اکثر به بې هوښه پروت ووم، په داسې حالت کې هم زمونږ د وطن ديوځو نام نهاد و اهلحديثو ملايانو زړه را باندې نه يخېدلو او خپلو صليبي بادارنو ته به يې دغلامۍ او جاسوسۍ پوره حق اداکولو، او زما تعذيب يې زياتولو، بيا چې کله د پول څرخي زندان ته نقل کړی شوم، هلته د هر قسم جرمونو خلک بنديان وو، مثلاً، مواد مخدر، غلا، سرقت او داسې نور... او طالبان هم بنديان وو، د جنايي جرمونو خلک زيات وو، داسې خلک پکې وو چې د خپلې مور سره ئی زنا کړېوه (معاذالله) لکن هلته هم دافتنه رسيدلې وه، دغلو او زناکارو د اصلاح کوشش يې نه کولو، د بې نمازانو غم ورسره نه وو، بلکې دهغو مخلصو مجاهدينو پسې لګېدلي وو چې مقلدين وو، او مونځ ګزارو خلکو ته يې دخپلو مونځونو په باره کې وسوسې اچولې د اختلافاتو بازار يې ګرم کړی وو، مونږ دخپلو اکابرو په طريقه ډېر د صبر او تحمل سره برداشت کولو، لکن چې کله مو وليدل چې دوئ زمونږ شرافت په کمزوری ورحملوي، او ددې څخه علاوه هغو عوامو او طالبانو چې ددوئ تقريرونه يې اورېدل او دوئ کتابونه يې کتل هم زمونږ څخه پوښتنې کولې چې آيا واقعي داحنافو لمن دحديثو څخه خالي ده ؟ آيا واقعي تقليد شرک دی؟ ايا واقعي داحنافو سره په ترک دقراءت خلف الامام او په ترک درفع اليدين او په وغيره مسائلو باندې هيڅ دليل نشته؟ او آيا واقعي فقه حنفي دقرآن او دحديث څخه خلاف ده؟ نو دمجبوريت له وجهې مې قلم را واخيستلو او يو څه هغه موضوعات مې وليکل چې غير مقلدينو د فتنې بازار پرې ګرم کړی وو.

ددعا اميدوار

مولوي رحيم الله الحقاني

النجرهاري المحبوس في جدر الصليبين.

بسم الله الرحمن الرحيم

# تمهيد

الحمدلله وحده والصلاة والسلام على من لا نبى بعده. امابعد:

اعلم: انه لابد ههنا من معرفة أموراجمالاً.

الأول: المعنى اللغوي للفظ المناظرة.

الثاني: المعنى الاصطلاحي.

الثالث: اركان المناظرة.

الرابع: حصص المناظرة.

الأول: المناظرة: مناظره يا مأخوذ ده له نظير څخه (او په مناظره کي هم دواړه مناظره کونکې په علميت کي سره برابر وي داسي نه چه يو شيخ الحديث وى اوبل د دوهمې درجې طالب وي)

أو من النظر... يا مأخوده له نظر څخه نظر بيا يا په معنى درؤيت سره ده او مناظره كوونكي هم يو بل ته مخامخ وي او يو بل ته گوري، او يا په معنى دتأمل سره دى او مناظره كوونكي هم تأمل كوى په خپله خبره او دخصم په خبره كې.

او من الانتظار... يا مأخو ده له انتظار څخه (ينتظر أحد المتخاصمين إلى ان يتم كلام الآخر لاان يتكلم فى وسط كلامه.

وفى الاصطلاح: يقال: المناظرة هي توجه المتخاصمين في النسبة بين الشيئين لاظهار الثواب )

والمجادلة: هي توجه المتخاصمين فى النسبة بين الشيئين لا لاظهار الثواب بل لالزام الخصم.

والمكابرة: هي توجه المتخاصمين فى النسبة بين الشيئين لا لاظهار الثواب ولا لالزا م الخصم بل لاظهار علمه.

## اركـان المناظـــرة

**وهي اربعة:** ١- مدعي ٢- مدعى عليه ٣- دعوى ٤- دلائل.

تعريف الدعوة: هي قضية مشتملة على الحكم: په مناظره کې حکم شرعي ليکل کيږي: مثلاً که غير مقلد وليکل چې تقليد حرام دي نو دا دعوه شوه ځکه چې حرمت حکم شرعی دی، او که ئي وليکل چې تقليد نشته نو دا دعوه نه شوه ځکه چې دلته ئي حکم شرعي نه دی لګولی بلکه حکم منطقي ئي لګولی دی.

تعريف المدعِي:

١-من نصب نفسـه لاثبـات الحكـم بالدليـل (ان كان الحكـم نظريـا) او التنبيهـه(اذا كان بديهياً)

٢- من اذا ترک تُرِک (يعني مدعِي هغه څوک دی چی خپله خبره پرېږدي نو مسئله به ختميږي مثلاً که غير مقلد رفع اليدين پرېږدي نو مسئله به ختمه شي نو دلته غير مقلد مدعي شو.

يا: المدعي من يثبت آمراً زائداً .... لکه: آمين بالجهر يا قـراءة خلـف الامـام : يا رفع اليدين، دا دري واړه آمور زائده دي او مقابل طرف يې اثبات کوي نو دلته هم غير مقلد مدعي دی.

يا: مدعِي من يخالف الظاهر

تعريف المدعِي عليه: هو من نصب نفسه لنفي الحكم :مثلاً غير مقلد ووائي چې تقليد شرک دی او مقلد وائي چې شرک نده نو مقلد نفی د حکم کوي او وايي چې شرک نه دی نو دلته مقلد ته مدعي عليه ويل کيږي.

او که مقلد ووايي چې تقليد واجب دی او غير مقلد ووايي چې واجب نه دی نو دلته غير مقلد نفې د حکم کوي نو غير مقلد مدعي عليه دي،نو دتقليد په مسئله کې من وجه مقلد مدعي دی او من وجه غير مقلد مدعي دی.

# دلائـــل

**الدليل على قسمين** ١- دليل تحقيقي ٢- دليل الزامي

**تعريف الدليل التفصيلي**: هو المركب من قضيتين للتأدى الى مجهول ولكن يكون فيه مقدمات مسلّمة عند المستدل (أول به دغه دليل پيش كوي)

دوهم دليل الزامي : په دي دليل كى دوه شرطه پوره كول ضروري دي اول شرط دادى چه مستدل به له دليل تحقيقي څخه عاجزراغلى وي يا به دليل الزامي پيش كوي دوهم شرط دادى چې به دغه دليل الزامي كي به هغه مقدمات پيش كوي چې مسلم عند الخصم وي مثلاً غير مقلد ته دغير مقلد كتاب پيش كړي او يا مقلد ته د مقلد كتاب پيش كړي.

## حصص المناظرة

**حصص المناظرة ثلاثة** ١- مباديات ٢- أوساط المناظرة ٣- مقاطع المناظرة .

دمناظرې كولو څخه مخكي دري شيان ضروري دي دغو دري واړو ته مباديات وائي :

أول تعين الدعوى: يعني مدعِي به دعوه ليكي او مدعي عليه به جواب د دعوي ليكي.

دوهم: تعين الدلائل: يعني مدعي كه مقلد وي خپل دلائل به معين كوي مثلًا وائي به چې زه اولاً له قرآنكريم څخه دلائل پيش كوم بيا له سنة څخه بيا له اجماع څخه على الترتيب بيا دقياس څخه يعني كه چرته په كتاب الله كه ملاؤ نه شو نو په سنت كي ئي گورم بيا كه په سنت كي ملاو نه شو په اجماع كي ئي گورم او كه په اجماع كي ملاو نه شو بيا زه قياس طرف ته ځم،او غير مقلد به خپل دلائل معين كوي مثلاً ددوي دلائل دوه دي قرآنكريم او حديث نبوي.

دريم: تشريح المفردات: يعني كه مقلد وائي چې التقليد واجب اوس به مقلد به مقلد دخپلو اصلو مطابق چې ادله اربعه دي دهمدغي جملي دمفرداتو تشريح كوى اول به دلفظ دتقليد تشريح كوي بيا به دواجب تشريح كوي ، او كه غير مقلد ووائي چې التقليد شرك: نو غير مقلد به هم دخپلو اصولو مطابق چې صرف قرآن اوحديث دي د دغو مفرداتو تشريح كوي نو هريو مناظر به دهريو مفرد تشريح دخپلو اصولو مطابق كوي :

مقلد به ئي دادله ؤو اربعه ؤ څخه تشريح کوي او غير مقلد به ئي د خپلو اصولو مطابق صرف له قرآن کريم او حديث څخه تشريح کوي

فائده: اکثره وخت غير مقلد په همدغي تشريح کی را ګير ولاي شي: ځکه چې تنها په قرآنکريم او حديث شريف کي دتقليد او دشرک جامع او مانع تعريف صراحتاً نه دی ذکر شوی نو که د بل هر امتي تعريف ئي درته را نقلولو نو ته به ورته وائي چې له خپلو اصولو څخه ووتلي دتقليد په رد کې دې تقليد وکړو

په او ساط المناظرة کي به له مدعِي څخه دلائل غوښتل کيږي او مدعي عليه به اعتراضات ورباندی کوی مثلاً د رفع اليدين په مسئله کې مدعِي غير مقلد دی او وائي چې رفع اليدين ښه دي او غير مقلد په دي مسئله باندي دليل قائم کړي چې په بخاری اول جلد ۱۰۲ صفحه کي درفع اليدين په باره کې دعبدالله بن عمرو مالک بن حويرث رضي الله عنهما حديثونه دي او س ده په رفع اليدين باندي حديث پيش کړو له بخاري څخه نو مقلد به اعتراض ورباندي کوی چه دعبدالله بن عمر حديث مرفوع نه دی په ابو داؤد شريف کي چې راغلي دي (الصحيح انه ليس بمرفوع) نو دا د رسول اللهﷺ حديث نه شو بلکه د يو صحابي فعل شو او د صحابي فعل ته تاسو حجت نه وائي: کما فی الحق الصريح جلد ۱ صفحه ۴۰

## مقاطع المناظرة

مقاطع المناظرة داده چې مدعِي به د مناظري په آخر کي تقرير کوي او وائی به چه زما دغه دعوه وه او دغه دلائل ما پيش کړل مثلاً څلور دلائل مي پيش کړل او مدعي عليه په اول دليل اعتراض وکړ او ما دغه جواب ورکړ او په دوهم دليل ئي هيڅ اعتراض ونه کړ له دي وجهي زما دغه دليل بي اعتراضه دی نو زما دعوه ثابته شوه لکن د اهل السنة والجماعة مناظر به ځان متوجه کوي چې غير مقلد دي تقريري درواغو ته پري نږدي ځکه دروغ دلا مذهبو عادت او شعار دی.

فائدة: په هره مسئله کي تعين د مدعِي ضروري دی او دعوه به مدعي ليکي او د تقليد په مسئله کي من وجه مونږ مدعيان بلل کيږو ځکه چې مونږ دعوه لګوو چې التقليد واجب او من وجه غير مقلدين مدعيان بلل کيږي ځکه چې هغوی هم حکم شرعي لګوی چی التقليد حرام او يا شرک او يا بدعة .

# مسائل التقليد

دتقليد ماده قلاده ده په بخاری شریف کي دبي بی عائشي رضي الله عنها په باره کي حدیث ده چې ان عائشة استعارت من اسماء رضي الله عنها قِلادةً بخاری جـ۱ صـ۴۸ - ۵۳۲: او قلاده هارته وائي چه کله دانسان په غاړه کي وي او پړي او پټي ته وائی چه کله دحیوان په غاړه کي وي وفی الصراح صف ۴۳ در کردن افگندن حمیل وغیر ان . وفی کشاف: اصطلاحات الفنون: التقليد هو اتباع الانسان صفـ ۱۱۷۸ يعني تقليد پیروي ته وائي : نو په لغت کی د تقلید دري معنی گاني شوي ۱- چاته پړي پر غاړه کی وراچول ۲- خپل ځان یا بل چاته هار په غاړه کي اچول: ځکه هار کله سړی خپل ځانته غاړه کي اچوي کله بل چاته او پړي همیشه سړی بل چاته غاړه کي اچوي ۳- پیروي.

فائدة: شیخ صاحب و ویل چې اکثره وخت به غیر مقلد له تاسو سره په لغوی معنی د تقلید کي بحث کوي او وائي چه تاسو حنفیان د امام صاحب تقلید کوی نو تقلید خو زه هم دسپي یا د خره کوم یعني پړی په غاړه کي ورته اچوم نو تاسو به دي غیر مقلد ته الزامي جواب داسي ورکړی چې دغه معند هغه څوک کوي چې دسپيو او خرو په معاشره کي لوئي شوی وي ځکه دا معند دهغه ذهن ته زر ورځي او مونږ (احناف) ئي دغه معنی نه کؤو کومه چې تاسو کوی بلکه مونږه دوهمه او دریمه معنی تری اخلو.

وفي الاصطلاح: هو اتباع الانسان غيره على ظن أنه محق في الدليل بلا نظر فى الدليل (النامي شرح الحسامي) ۲- يا قبول قول الغير من غير دليل دلته من غير دليل د قبول سره لگيږي: يعني قبلول به بلا دلیل وي قول دغیر به دلیل لري لکن مطالبه ددلیل به پکي نه وی ۳- مولانا اشرفعلي تهانوی رحمة الله علیه داسي تعریف کوي چی تقلید دیته وائی چې دیو چا خبره ومنی پدي اعتماد چې دده خبره له دلیل سره موافقه ده لکن چی د دلیل مطالبه پکي ونه شي الانصاف صف ۳

۴ ددي ټولو تعریفونو حاصل دادی چې تقلید دېته وايي چې دیو مجتهد په رهنمائی کي په دین باندي عمل کول.

په دي سره د فع د اشکال هم وشوه هغه اشکال داده چې غیرمقلد وائي چې قرآنکریم او سنت نبوی صلی الله علیهم وسلم شته زه په همدغو دواړو عمل کوم او بل هیڅ نه منم او تاسو حنفیان له دی څخه علاوه فقه هم او مني یا وائي چې زه د الله جل جلاله او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم څخه علاوه د بل چا خبره نه منم او تاسو

حنفیان د امام صاحب رحمة الله علیه خبره مني نو دا اشکال بلکل غلط دی ځکه چې مونږ د الله جل جلاله او د پیغمبر خبره منو لکن د امام صاحب رحمة الله علیه په رهنمائي کي نو مونږ د امام صاحب په رهنمائي کي په دین عمل کوو او تاسو د الله جل جلاله او د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د خبری د منلو دعوه کوئ لکن د دې زماني د ملا یانو په رهنمائي کي

## توضیحات

تاسو واورېدل چې تقلید دېته نه وایي چې په دلیله خبره و مني بلکې تقلید دېته وایي چې دیو مجتهد بادلیله خبره و مني د مجتهد سره دلیل وي لکن ته صرف مطالبه د دلیل نه کوي مثلا مونږ هم حج کوو او غیر مقلدین هم حج کوي لکن د حج د ټولو مناسکو تفصیلي دلائل اکثرو ته ندي یاد تنها دا اعتماد د هرچا سره دی چې د دې هر څه دلائل شته لکن څوک ئي مطالبه نه کوي دا تقلیدي حج شو نو څوک چې تقلید مني د هغو د عقیدي مطابق دا حج موجب د ثواب دی او څوک چې تقلید ته کفر او شرک وائي نو د هغو د فتوو مطابق دا په کروړونو حاجیانو په حرم کي حج ندی کړی بلکه کفر او شرک ئي کړی دی.

۲- همدارنګه د لمانځه د ټولو اقوالو او افعالو دلائل اکثرو ته ندي یاد صرف دا اعتماد ورسره دی چې د دي هر څه دلائل شته لکن مطالبه د دلائلو نکوي نو د دی تعریفونو مطابق دا تقلیدي لمونځ شو څوک چې تقلید مني د هغوی د عقیدي مطابق دا لمونځ موجب د ثواب دی او څوک چې تقلید ته کفر او شرک وائي د هغوي د فتوو مطابق دا په اربونو مسلمانان لمونځ نه کوي بلکه کفر او شرک کوي.

۳- په اربونو مسلمانانو د قرآنکریم تلاوت کړی دی او کوي ئي لکن د قرآن د هر حرکت او سکون د هر زبر او هر زیر د هر پیښ او د هر غړوندي دلائل اکثروته ندي یاد صرف دا اعتماد ورسره دی چې د دي ټولو دلائل شته دي لکن مطالبه د دلائلو نه کوي نو د دی تعریف مطابق دا تقلید تلاوت شو نو څوک چې تقلید مني د هغوي د فتوو مطابق دا تلاوت موجب د ثواب دی او څوک چې تقلید ته کفر او شرک وائي د هغوي د فتوو مطابق دا په اربونو مسلمانانو نه تلاوت کړی دی او نه ئي کوي بلکه کفر او شرک ئي کړی دی او کوي ئي.

۴- کله چې مسلمانان د ېرشول نو حضرت عثمان (رض) د جمعې د مانځه لپاره یو اذان زیات کړو او هېچات مطالبه د دلیل و نکړه د دې تعریفونو مطابق دا دی ټولو صحابه وو تقلید نو څوک چې تقلید ته واجب

واړی دهغوی دفتوو مطابق دا اربونو مسلمانان تو ایتیان بالواجب تقلید ته شرک او کفروائی دهغوي دفتوو مطابق دا ټول کافران او مشرکان (معاذالله)

۵: اسلام یقیناً چې حق دین دی لکن نن سبا اکثر مسلمانان داسې دي چې د اسلام حقانیت مني، لکن دلایل ورته ندي یاد او نه یې په دلایلو پوهېږي، صرف د احسن ظن ورسره دی چې د اسلام د حقانیت دلایل ډېر دي، چې مشائخو ته یاد دي، داسې اسلام ته تقلیدي اسلام وایي، د اهلسنت والجماعت د فتوو مطابق دا کسان مسلمانان دي، او څوک چې تقلید ته شرک او کفر وايي، دهغو د فتوو مطابق دا کسان کافران او مشرکان دي.

۶: یو عیسایي سړی دی رحمت مسیح نومېږي هغه اسلام راوړو علماو ورباندې نوم رحمت الله کېښودو هغه ته د عیسایت په بطلان هیڅ دلیل ندی معلوم بغیر د مطالبې د دلیله یې عیسائیت پرېښی دی او نه ورته د اسلام د حقانیت دلائل معلوم دي بغیر د مطالبې د دلیله یې اسلام راوړی دی صرف د احسن ظن او ښه گمان ورسره دی چه اسلام حق دین دی او دد ې حقانیت په دلایلو ثابت دی. د ې ته تقلیدي اسلام وایي.

د اهل سنت والجماعت مقلدینو د فتوو مطابق دا صحیح مسلمان شو، او څوک چې تقلید ته شرک وایي دهغوی د فتوو مطابق دا سړی مشرک راغلی وو او مشرک لاړو.

ځکه ده عیسائیت تقلیداً پرېښود و او اسلام یې هم تقلیداً قبول کړو.

**فائده: په دین کي تقریباً پنځه قسمه مسائل دی**

**أول:** مسائل غیر منصوصه.

**دوهم:** مسائل منصوصة متعارضه.

**دریم:** مسائل منصوصه محتمل التأویل.

**څلورم:** مسائل منصوصه غیر مبینة الحکم. دا څلور واړه غیر واضح مسائل دي.

**پنځم:** مسائل منصوصه غیر متعارضة غیر محتمل التأویل مبینة الحکم: داسي مسائل واضح مسائل دي

اول مسائل غیر منصوصه: لکه په ټیلیفون باندي نکاح کول، یا په پیچکارۍ باندې روژه ما تیږي که نه؟ یا دیو انسان بل انسان ته وینه ورکول..... دا مسائل غیر منصوصه دي

**كيفية درهنمائي:** مجتهد مسائل غير منصوصه راجع كوي مسائل منصوصه ؤ وته: مثلاً پيچكاري سره روژه ماتيږي كه نه؟ اوس په دغي مسئله كي مجتهد اجتهاد كوي دصحابه و رضي الله عنهم په وخت كي چې به كومه غذا د مساماتو له لاري تلله هغه مفطر نه وه او كومه غذا به چې بغير د مساماتو له لارى تلله هغه به مفطره وه نو پيچكاري كي به هم داسي كوو او گورو به چې دا له كومي لاري بدن ته زي دغه رنگي نور مسائل غير منصوصة راجع كوي منصوصه وو ته او غير مجتهد د مجتهد رهنمائي كي ورباندي عمل كوي.

دوهم مسائل منصوص متعارضه: لكه رفع اليدين وغيره.. مجتهد په دي مسائلو كي له خپل ځان څخه حكم نه لگوي بلكه اولاً تطبيق كوي كه تطبيق ممكن نه وو بيا ترجيح كوي كه ترجيع ممكن نه وه بيا ثالثاً په نسخ باندي قول كوي او كه نسخ هم ممكنه نه وه نو بيا رابعاً توقف كوي او غير و مجتهد د مجتهد په رهنمائي كى پرى عمل كوي او غير مقلد مجتهد نه دى نو خپله خو په دي څلورو طريقو كي يو هم نشي كولى ځكه چې اهليت پكي نشته او د بل مجتهد پيروي ته كفر او شرک وائي يعني نه په خپله پوهيږى او نه د پوه خبره مني له دي وجهي هغوي په متعارضو احاديثو عمل نشي كولى بلكه هميشه غير مقلدين په متعارضو احاديثو كي د يو جانب احاديثو څخه انكار كوي مثلاً د آمين بالسر آحاديثو څخه انكار كوي د ترک د رفع اليدين له احاديثو څخه انكار كوي د ترک د قراءة خلف الامام له احاديثو څخه انكار كوي وغيره...

**دريم:** مسائل منصوصه محتمل التأويل: مثل قوله تعالى: [يَتَرَبَّصنَ بِأَنفُسِهِنَّ ثَلَثَةَ قُرُوءٍ الآيه] په آيت كي د لفظ د قرء څخه طهر، او حيض دواړه اخستيل كيداي شي خو يو مجتهد حيض اخلي بواسطة القرائن او بل مجتهد طهر اخلي.

**څلورم** مسائل منصوصه غير متعارضة الحكم: مثل الحمد لله: په قرآنكريم كي مذكور ده لكن حكم ئي نده راغلي چې لوستل ئى فرض ده او كه واجب؟ دلته مجتهد صرف حكم لگوي چه فرض دى يا واجب؟.

**پنځم** مسائل منصوصة غير متعارضه غير محتمل التأويل مبينة الحكم مثل مسائل العقائد يا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ: به همدي مسائلو كي تقليد واجب ندى.

## دلامذهبو يو څو وسوسې

۱- مخکی مونږ دتقليد معنی لغوی او اصطلاحي ذکر کړه نو غير مقلدين چونکه دتهذيب څه خلاص دي نو دوی يو بی تهذيبه اعتراض کوي او وايي چې زه خو تقليد دسپي او دخره هم کوم يعني هغوي ته پړی او پټه په غاړه کي وراچوم نو دوی دتقليد لغوي معنی اخلي او هغه هم صرف يوه معنی نو تاسو به څلور جوابونه ورکوي

**اول الزامي جواب**. جواب ترکي چې ای غير مقلده ته چې دغه معنی دتقليد کوي نو مجبور يې ځکه چې ته خو دحيواناتو په معاشره کي لوي شي ئي دانګريزانو ډير سپي دې مينځلي دي نو دسپيو سره بلد ئي ځکه دسپيو معنی د زر ذهن ته درځي لکه وګی سړی ته چې دهر عدد څخه ذهن ته ډوډی ورځي او څوک چې دانسانانو په معاشره کي لوي شوی وي هغه دهار سره بلد وي نو هغه دانسانانو معنی کوي نو مونږ ئی دهار معنی کوو.

**دوهم جواب:** که ته دتقليد معنی دپړي او دپټې والا کوي نو بيا زه داوايم چې مقلد صيغه داسم فاعل ده معنی ئي داده چې د پړي او د پټې اچوونکی يعني بل چا ته پړی وراچول تقليد دی نو مونږ مقلدين يو په دې معنا باندې چې موږد دغو لا مذهبو او جعلي اهل حديثو ته پړی او پټې په غاړه کې وراچو ځکه چې پړی خو سړی خپلي غاړي ته نه اچوي او هار سړی خپلی غاړي ته هم اچوي او دبل چا غاړې ته يې هم ور اچوي.

**دريم جواب:** که ته د تقليد په معاني ؤ کی دغه دپړي معنی کوي نو بيا خو دحديث هم داسي معنی شته چې مونږ تاسو ته په هغي معنی اهل حديث ووايو هغه داسي چې دحديث لپاره دري معنا ګانې دي

اول : حديث په معنی دجديد اونوي سره دالغوي معنی ده

دوهم : حديث په معنی دحديث الرسول صلی الله عليه وسلم سره دا اصطلاحي معنی ده

دريم: حديث په معنی دشيطان سره داعلمي معنی ده ، شيخ عبد القادر جيلاني رحمه الله په غنية الطالبين صفه ۱۴۷ کي ليکلي دي چې يوه ورځ شيطان خپله لکی په خپل مقعد کي دننه کړه اواوه (۷) داني هګی ئي واچولي د هري هګی څخه ئي يو يو بچی پيدا شو له دوهمې هګی څخه ئي چی کوم بچي را ووتلو دهغي نوم ئي حديث کيښودلو او ورته وي ويل چې ستا وظيفه په لمانځه کې خلکو ته وسوسه وراچول دي او س د ده فوج دی چې نوم ئي اهل حديث دی.

اوس مونږ داوايو چې که ته د تقليد که هغه دپړي معنی کوي نو زه هم ستاسو په حق کي د حديث عَلمي معنی کوم او وايم چې تاسو اهل حديث ياستي په معنی د اهل ددي شيطان چې دلمانځه دوسوسي لپاره ئي مقرر کړي دي تاسو هم انگريزانو د دي لپاره مقرر کړي ئي چې لمونځ کوونکو ته په لمونځونو کي وسوسي ور اچوئ چاته وايي چې تاسو خو داسونو دلکيو دخوزولو په شان رفع اليدين نه دی کړی چاته وايي چې تا ديهود په شان په سينه باندې لاسونه کېښنبودل چاته وايي چې ته داسې دګنج دروازې په مقدار آزاد ونه دربدلې لکه مېښه چې سوتړه کوي وغيره.

**تحقيقي جواب:** اعتبار شرعي معنی ته وي نه لغوی معنی ته ځکه چې که ته لغوي معنی ته اعتبار ورکوي نوبيا خو زه وايم چې دصلوة لغوي معنی تحريک صلوين ده نو اوس کوناټيو ته يو شرنگ ورکوه لمونځ به دي کيږي حالانکه ته هم دلته لغوي معنی ته اعتبار نه ورکوي

**دوهم اعتراض:** غير مقلدين اولا مذهب يو اعتراض کوي چې مذهب خو بيت الخلاء ته وائي؟

**جواب:** مذهب په معنی داجتهادي رأي سره راځي که ته د ليتړين معنی کوي نو بيا خو په ازالة الخفاء صفـ٨٢ تأليف شاولي الله رحمه الله کي ئي داسي ليکلي دي چې مذهب عمر بمنزلة متن است ومذاهب اربعة بمنزلة شروح نو اوس دلته هم د مذهب معنی په ليتړين سره وکړه حالانکه دلته دليتړين ترجمه کفر دی همدارنګه په مقدمه د مسلم شريف جـ٢ صفـ٦ کي راغلي دي چې (مذهب المحدثين) او بيا په مسلم شريف صفـ٣٣ جـ٢ کي ليکي چې مذهب معاويه ومعاذ بن جبل رضي الله عنهما دلته هم بيا د مذهب معنی په ليتړين سره وکړه هسی شف شف مه کوه ورشفتالو يې کړه چې ښکاره کافر شې، او همدارنګه دلامذهبه ثناء الله امير ترسري رساله ده چې نوم ئي ده اهل حديث کا مذهب يعني د اهل حديثو مذهب دلته هم بيا ووايه چې د اهل حديثو ليتړين.

## د تقليد او د اتباع په منځ کې فرق شته او که نه؟

که څوک غير مقلدينو ته ووائی چې تاسو خو هم دسلفو تقليد کوي نو دوی جواب کوي چې مونږ تقليد نه کوو اتباع کوو او فرق بيانوي په مينځ د تقليد او اتباع کي فرق داسي کوی چې تقليد قبول قول الغير بلا دليل، ته وايي او اتباع قبول قول الغير مع الدليل ته وايی که حواله ورځخه وغواړي نو حواله به په ابن القيم

باندې درکوي وائي چې ابن القيم دتقليد او اتباع په مينځ کي فرق کړی نور نه حديث شته او نه قرآن بلکه دغه يوه حواله ده.

لکن عندنا فرق په مابين دتقليد، اتباع، اطاعت، او اقتدا کي نشته بلکه دټولو يوه معنی ده او س مونږ دلائل پيش کوو په عدم فرق:

## اول دليل له قران کريم څخه

په قرآنکريم کی الله جل جلاله فرمائي کافرانو ته[وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَاأَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ (البقره/١٧٠)

يعنې الله تعالی کفاروته وفرمايل چې تاسو دوحي اتباع وکړي دوی وويل چې مونږ دآباؤ او داجدادو پر طريقه باندې ځو دهغو دطريقې اتباع کوو، اوس په آيت کريمه کي داتباع لفظ راغلی دی او مطالبه ددليل پکې نشته نو مشرکينو له خپلو آباء او اجدادو نه د دليل مطالبه نه وه کړې او نه ئې دآباء او اجدادو سره دليل وو.

په بل آيت کريمه کي الله تعالی فرمائي[وَاتَّبَعُوا أَمرَ فِرعَونَ الآيـه] يعني هغوي پيروي وکړه دامر د فرعون دامر دفرعون دلته هم لفظ داتباع راغلی دی نه دليل شته او نه مطالبه د دليل.

بل آيت کي فرمائي [وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاطِ الشَّيطٰن] دلته هم دشيطان داتباع ذکر دی او مطالبه د دليل ورسره نشته.

**دوهم حديث مبارکه:** په حديث کي هم داتباع ذکر شته او مطالبه د دليل ورسره نشته مثلاً نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلی چې (والعاجز من اتبع نفسه هـواه) نو نفس تابع کول دخواهش بلا مطالبه د ليل دی هيڅ مطالبه د دليل له خواهش څخه نده شوي

دريم دليل اجماع د اهل لغتو: همدارنګه د لغت په کتابونو کی هم د دوي په مابين کي فرق نه شته. [فی النامي شرح حسامی صفـ ١٩٠ التقليد اتبـاع الانسـان غـيره ...الـخ/ کشـاف اصـطلاحات الفنـون صفـ١١٧٨ التقليد اتباع الانسان الخ /شرح منار مصری صفـ ٢٥٢ للعلامـه ابـن الملـک وعلامـه

عيني: التقليد عبارت عن اتباعه فی قوله وفعله. سبيل الرشاد صفــ ۲۷ للعلامه رشيد احمد گنگوهي رحمه الله : التقليد والاتباع كلاهما مترادفان لهما معنى واحد.

## د ټولو کتابونو د لغاتو څخه عدم فرق ثابتيږي

مونږغير مقلدينو ته وايو چې تاسي هم په بعضو ځايونو کي فرق داتباع او دتقليد په مينځ کې نه کوي مثلاً تاسو چې دمقلدينو په خلاف کوم آيت پيش کوي نو وائي چې مقلدين داسي کوي لکه مشرکان الله جل جلاله په قرآنکريم کي فرمائي[بَل نَتَّبِعُ مَاأَلفَينَا عَلَيهِ آبَائَنَـا] دلته اتباع راغلي ده لکن لا مذهبان ورڅخه تقليد مرادوي نو دلته ولې د اتباع ترتجمه په تقليد باندې کوئ

دلامذهبو ددليل څخه جواب: داخبره ابن قيم رحمه الله دابوعبدالله بن خوازمنداد البصرى المالكى په حواله ليكلى ده علامه ابن فرحون رحمه الله دده په باره کښې ليکلي دي چې (ولم يكن بجيد النظر ولاقوى الفقه الى قوله وكان يجانب انكلام وينافر اهله حتى يؤدى ذلك الى منافرة المتكلمين من اهل السنة ويحكم على الكل منهم بانهم من اهل الاهواء .) [الديباج المذهب ص ۲٦۸].

دده رأيه عمده نه وه او په فقه کې هم کمزوری وو بيا مخکښې ليکي چې ده دعلم کلام څخه اجتناب کولو او دمتکلمينو څخه ئې نفرت کولو تردې چې په ټولو اهل سنتو ئې دبدعت حکم کړی وو، دوهم داچې دده داخبره دتقليد مذموم په باره کې ده دتقليد ممدوح په باره کې ندی، دريم داچې ده ويلي دي چې تقليد دالله په دين کې ناجأيز دي ددې څه معنى ده؟ که هغه تقليد ئې مرادوي چې په عقايدوکې وي نو په هغې کې زمونږ بحث ندی او که دغيرمجتهد تقليد ئې مرادوي چې دلاعلمی په وجه دمجتهد طرف ته رجوع کوي نو بيا خو دادقرآن او دحديث څخه صريح بغاوت دی.

څلورم داچې دخوازمنداد ددې خبرې منل دقرآن ايت دی؟ او که درسول الله ﷺ حديث دی؟ او که ديو امتی تقليد دی؟

## د لامذهبانو يو څو نورې وسوسې

**فانقيل:** لا مذهبان اعتراض کوي چې د احنافو په مشهور کتاب ( مسلم الثبوت / ص ۲۸۹ ) او نورو کتابونو کې د تقليد تعريف داسې شوی دی چې: (التقليد أخذ قول الغير من غـير حجـة ) يعني لـه دليل نه

پرته د بل چا د خبرې منلو ته تقليد وايي، نو اوس کومو حضراتو فقهاوو چې له مسايلو سره دلايل وړاندې کړي دي دوی مقلدين نه شول او نه د دوی پيروي تقليد شوه. لکه: امام ابويوسف، امام محمد، امام زفر، امام طحاوي، علامه عيني، حافظ ابن الهمام، امام مرغيناني، امام کاساني، امام سرخسي، امام کرخي، امام جصاص او ملا علي قاري رحمهم الله او نور. ځکه چې دا ټول حضرات د مسايلو دلايل هم بيانوي او د تقليد تعريف دا دی چې: خالص په نېک ګمان بغير د دليله د بل چا خبره ومني.

**قلنا**: دا اعتراض له ډېرو وجوهو بالکل غلط دی: لومړی وجه دا ده چې: لامذهبان چې کله دا اعتراض کوي نو د مسلم الثبوت پوره عبارت نه رانقلوي، که پوره عبارت رانقل کړي، نو بيا هيڅ شبهه پکې نه پاتې کيږي. او کېدی شي چې په ناقص عبارت رانقلولو کې دوی د ځان له پاره خير ګوري. د مسلم الثبوت پوره عبارت دا سې دی چې: ( فصل : التقليد العمل بقول الغير من غير حجة كأخذ العامي والمجتهد من مثله . فالرجوع الى النبي صلى الله عليه وسلم او الى الاجماع ليس منه. و كذا العامى الى المفتى والقاضى الى العدول لا يجاب النص ذلک عليها لكن العرف على ان العامى مقلد للمجتهد. قال الامام و عليه معظم الاصوليين .. الخ) [مسلم الثبوت/ ص ۲۸۹].

ترجمه: فصل دی په بيان د دې کې چې تقليد دې ته وايي چې بغير د دليل نه د بل چا په قول باندې عمل وکړي. لکه عامي او مجتهد چې د خپل هم مثل يعنې د عامي او مجتهد په قول باندې عمل وکړي، نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د اجماع طرف ته رجوع کول تقليد نه دی. او همدارنګه د عامي رجوع د مفتي طرف ته او د قاضي رجوع عادلانو ته هم تقليد نه دی، ځکه چې په دوی باندې دا سې کول نص واجب کړي دی. مګر عرف په دې روان دی چې عامي د مجتهد مقلد دی. امام الحرمين فرمايي چې: په دې باندې اکثره اصوليان دي.

نو د مسلم الثبوت د ملا صيب د عبارت خلاصه دا شو چې: د چا قول چې د چا له پاره حُجت وي د هغه له پاره دده د خبرې منل تقليد نه دی. لکه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خبرې منل تقليد نه دی، ځکه چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان حُجت دی. همدارنګه اجماع هم حجت دی، نو د اجماع منل هم تقليد نه دی. همدارنګه د ( فاسئلوا اهل الذكر ) و غيره آيتونو مطابق د عامي ( غير مجتهد ) له پاره د مفتي قول منل حجت دی، نو دا هم تقليد نه شو. او همدارنګه قاضي چې د عدولو طرف ته رجوع کوي نو د ( مِمَّن تَرضَونَ مِنَ

الشّهداء ) او د ( يحكُمُ بِـهِ ذَوا عدلٍ مِنكُم ) و غيره نصوصو مطابق دا هم تقليد نه شو. بلکې تقليد يوائې او يوائې دا شو چې د چا قول چې حُجت نه وي د هغه په قول باندې عمل وکړي.

لکن په عرف کې او د اکثرو اصوليانو په نزد اګرکه د مجتهد قول د عامي ( غير مجتهد ) له پاره حُجت دی، خو بيا هم ددې منلو ته تقليد وايي. لهذا غير مجتهد چې د مجتهد تقليد کوي نو به ده باندې د ( من غير حجّة ) د اصوليانو ددې واضح عبارت څخه غفلت دی.

دوهمه وجه داده چې: د تقليد په تعريف کې د ( مِن غير مطالبة دليلٍ ) او د ( من غير تأمـلٍ فى الدّليـل ) او د ( لا نظر فى الدّليل ) الفاظ هم راغلي دي. ددې معنا داده چې دليل په خپل ځای کې موجود دی، لکن مقلد ددې دليل مطالبه نه کوي. او دهغه خاص دليل فکر ورسره نه وي د کوم څخه چې مجتهد استنباط کړی دی. ځکه چې په ( الدّليل ) کې الف لام عهدي دی، هغه دليل ترينه مراد دی کوم چې مجتهد د استنباط په وخت کې ملحوظ کړی دی. هغه دليل ترينه نه دی مراد کوم چې مقلد د خپل طرف څخه پيش کوي.

خلاصه دا چې د تقليد تعريف يوائې هغه نه دی کوم چې د مسلم الثبوت مصنف او نورو په حواله باندې ذکر کولی شی. بلکې نور تعريفونه يې هم شته، چې په هغې کې داسې راغلي دي چې : مقلد مطالبه د دليل نه کوي، اګرکه دليل په خپل ځای کې موجود وي.

[كما فى كشاف اصطلاحات الفنون / ص ۱۱۷۸ و شرح منار مصرى / ۲۵۲ و نامى شرح حسامى / ص ۱۹۰ ]

دريمه وجه داده چې: په دې تعريف کې تفصيل دی. ځکه چې په دې تعريف کې دوه مقامه دی. اول دا چې غير مجتهد د بل چا قول ومني، يوائې د نېک ګمان او اعتماد په بنياد، دليل وي او که نه وي. دوهم دا چې دليل اګرکه په خپل ځای کې موجود وي لکن مقلد د مجتهد د خبرې په منلو کې د دليل محتاج نه وي. او په دوارو مقامونو باندې بنه ډېر دلايل دي.

د اول مقام له پاره وګوره : بخارى / ج ۲ / ص ۱۰۷۲ / مسـلم / ج ۲/ ص ۱۲۰/ طيالسى / ص ۷/ نـووى شرح مسلم / ج ۲ / ص ۱۲۰/ بخارى / ج ۲ / ص ۷٤۸ / تـذكره / ج ۱ / ص ۲٤/ تـدريب الـراوى/ ص ۲۰۵/ طبقات ابن سعد/ ج ۲ / ص ۲۵/ بخارى / ج ۲ / ص ۹۹۷/ ابوداوود / ج ۲ / ص ٤٤ / ترمذى / ج ۲ / ص ۳۰/ طبقات ابن سعد / ج ۷ / ص ۱۲۸ / تذكره / ج ۱ / ص ۷٦ .

ددې حوالو والا احاديث لفظاً وروسته د دولسم سوال په ځواب کې لاندې راراوان دي. د دوهم مقام له پاره هم ډېر دلايل دي ، چې د دولسم سوال د ځواب لاندې به راشي.

**فانقيل** : د لامذهبو شيخ الکل نذير حسين دهلوي اعتراض کوي چې: د احنافو د اصولو په کتابونو کې د تقليد تعريف داسې شوی دی چې: ( التقليد ، العمل بقول الغير من غير حجـةٍ ، يتعلـق بالعمـل، والمـراد بالحجة حجةٌ من الحُجج الاربع ).

بيا ليکي چې: د مقلدينو د اصطلاح مطابق واضحه شوه چې تقليدي عمل د ادله اربعه وو څخه خارج دی او کوم عمل چې د ادله اربعه وو څخه خارج وي هغه عمل شرعاً تکليفي عمل نه وي، بلکې مردود او باطل وي. نو نتيجه دا شوه چې تقليدي عمل باطل او مردود عمل دی. او مخکې ليکي چې: الحمدلله چې د اصطلاح د مقلدينو څخه ثابته شوه چې تقليد څه شرعي اصل نه لري، او دا په مقلدينو باندې سخت حُجت دی. الـخ. [فتاوی نذيريه / ج ۱ / ص ۱۸۴].

**قلنا:** چې په دې تعريف کې د (من غير حجةٍ) معنا داده چې : د غير مجتهد له پاره د مجتهد خبره حجت ده، لکن د مجتهد قول دده له پاره نه قرآني آيت دی اونه د حديث متن دی او نه د اجماع مقوله ده. او نه د غير مجتهد په حق کې قياس او اجتهاد دی، ځکه چې هغه بې چاره نه پوهيږي. مثلاً يو مجتهد مسئله بيان کړه چې: که د يوې پېغلې نجلۍ او يا د يوې مړې شوې ښځې په تيونو کې الله جل جلاله شودې پيدا کړې او دا يو ماشوم ته ورکړی شي نو ددې څخه رضاعت ثابتيږي. [ فتاوی قاضيخان / ج ۱ / ص ۱۸۹ ].

نو دا مسئله د مقلد له پاره نه قرآني آيت دی او نه د حديث متن دی او نه اجماعي مقوله ده او نه د مقلد په حق کې قياس دی، بلکې دا د مجتهد قياس دی او غير مجتهد يې په منلو باندې مکلف دی.

**فانقيل:** چې د تقليد په وجه په دين کې د حنفيت ، شافعيت، مالکيت او حنبليت فرقې جوړې شوې او الله جل جلاله فرمايي چې: ( ولا تتفرّقوا ) .

**قلنـــا:** يو افتراق دی او بل اختلاف دی. اختلاف دې ته وايي چې: لارې جُدا جُدا وي، مگر منزل او مقصود يو وي او دې ته رحمت ويلی شوی دی.

او افتراق دې ته وايي چې: لارې هم جُدا جُدا وي او منزل او مقصود هم جُدا جُدا وي، نو د اسلام او د کفر په منځ کې افتراق دی . همدارنګه د بدعت، الحاد ، او د سنت په منځ کې هم افتراق دی، مګر د مذاهبو په منځ کې اختلاف دی او دې ته فرقې نه شي ويل کېدلی بلکې دا يوه فرقه ده.

په [په مسلم / ج ۲ / ص ۳۳ ] او نورو ځايونو کې راځي چې: ( و هو مذهب معاذ بن جبل و معاوية رضی الله تعالی عنهما ) نو آيا دلته داسې ويلی شي چې دغو دواړو صحابه وو دوه فرقې وې ؟

ددې ډېر مثالونه دي. مثلاً وګوره : ] مقدمه مسلم / ص ۱۳ و ص ۵ / و کتاب الاعتبار / ص ۱۱ / طبقات / ج ۶ / ص ۱۸۲ / الجنه / ص ۴۰ و غيره ].

**فانقيل:** غير مقلدين وايي چې: مونږ په قرآن او په سُنّت عمل کوو او تاسو په امامانو پسې روان ياست!

**قلنا:** مقلدين هم په قرآن او په سنت عمل کوي، خو د يو ماهرِ شريعت يعنې د مجتهد په رهنمايی کې ورباندې عمل کوي او غير مقلدين خپله په قرآن او سنت نه پوهيږي، ځکه چې مجتهدين نه دي او نه د بل مجتهد رهنمايي مني، نو دوی په کتاب او سنت عمل نه شي کولی.

د مقلِد مثال د هغه مريض په شان دی چې خپله ډاکټر نه دی او د طب د کتابونو څخه خپل علاج د يو ماهر سپېشلسټ ډاکټر په رهنمايي کې کوي. نو مقلدين په قرآن او سنت عمل کوي، مګر د يو داسې ماهرِ شريعت په رهنمايي کې کوي چې د هغه مهارت او مجتهدوالی په شرعي دليل يعنې ( اجماع ) سره ثابت دی.

او لا مذهبو د مولويانو مثال د هغه مريض دی چې خپله ماهر ډاکټر نه دی او د طب د کتابونو څخه خپل علاج د يو ماهر په رهنمايي کې نه کوي، بلکې په خپل سر لګيا دی او د علاج کولو دعوا کوي او د ماهرو سپېشلسټانو ډاکټرانو او له دوی څخه د علاج کوونکو مريضانو پسې بنکنځلې کوي او خلک علاج کولو ته نه ورپرېږدي او د لا مذهبو د عوامو مثال د هغو مريضانو دی چې خپله ډاکټران نه دي او نه د ماهرو ډاکټرانو په راهنمايي کې د طب د کتابونو څخه خپل علاج کوي. بلکې د طب له کتابونو څخه خپل علاج د مداريانو په رهنمايي کې کوي.

همدارنګه د مقلدينو مثال د هغو ړندو دی چې يو خيرخواه راه بلد بينا سړي ته يې لاس ورکړی وي او روان وي، نو دا به ضرور خپل منزل مقصود ته رسيږي. او د لامذهبو د مولويانو مثال د هغو ړندو دی چې له جلال آباد څخه نورستان ته په خپله روان وي، نه چا ته لاس ورکوي او نه د چا څخه پوښتنه کوي. او د لامذهبو د

عوامو مثال د هغو ړندو دی چې له جلال آباد څخه نورستان ته روان وي مګر بل ړوند ته یې لاس ورکړی وي. نودا دواړه قِسمه خلک به ضرور د هلاکت کندې ته غورځیږي.

و کذلک نقول: چې د لا مذهبو دا دعوه بالکل غلطه ده چې مونږ په قرآن او سنت باندې عمل کوو. ځکه چې په قرآن کریم او سنت کې یو اصل ذکر شوی دی چې (اجماع) ورته وایي.

الله جل جلاله فرمایي چې: (وَمَنْ يُشَاقِقِ الرَّسولَ مِن بَعدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الهُدى وَ يَتَّبِع غَيرَ سَبِيلِ المُؤمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلّى). او حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي چې: (لاَ يَجتَمِعُ أُمَّتِي عَلى الضَّلالَةِ). همدارنګه بل اصل قیاس دی. الله تعالی جل جلاله فرمایي چې: (فَاعْتَبِرُوا يَاأُولِي الأَبْصَارِ). او لا مذهبان له دغو دواړو اصولو څخه منکر دي. نو که دوی قرآن کریم منلی نو قرآني اصل (اجماع او قیاس) به یې منلی، نو اجماع او قیاس نه منل دا په حقیقت کې د قرآن کریم او سنت نه منل دي.

او همدارنګه په قرآن کریم او سُنتو کې د فقهاوو اود مجتهدینو ذکر راغلی دی. نو که دوی قرآن او سُنّت منلی، نو فقهاء او مجتهدین به یې منلی، نو د فقهاوو اود مجتهدینو نه منل دا د قرآن کریم او سنتو نه منل دي.

**فانقیل:** غیر مقلدین پوښتنه کوي چې: تاسو ولې په عقایدو کې د امام صاحب رحمه الله تقلید نه کوئ؟ هلته خو تاسو د ابو منصور ماتریدي رحمه الله تقلید کوئ!

**قلنا**: اوّلاً الزماً: چې تاسو ولې په قرئت کې د امام بخاري رحمه الله تقلید نه کوئ؟ هلته خو تاسې د قاري عاصم کوفي تقلید کوئ!

و قلنا ثانیاً تحقیقاً: چې تقلید په اجتهادي مسائلو کې کیږي. او په عقایدو کې د اجتهاد څه دخل نشته.

**فانقیل:** چې بیا ځان ته ولې اشعریان یا ماتریدیان وایئ؟

**قلنا:** دا تقلید نه دی بلکې نِسبت دی.

**فانقیل:** چې بیا ولې دا نسبت امام ته نه کوئ؟

**قلنا:** په اجتهادي باب کې مکمل ترتیب او تدوین د مسائلو امام صاحب رحمه الله وکړ اود عقایدو په باب کې یو حنفي (ابو منصور ماتریدي رحمه الله) او بل شافعي (ابو الحسن اشعری رحمه الله) مکمل ترتیب او تدوین وکړ.

## د اهل السنة والجماعة دعوی

کله چې مونږ د غیر مقلدینو سره مناظره کوو او دعوی لیکو نو دعوه به داسي لیکو چې مونږ اهل سنة والجماعة (۱) په اجتهادي مسائلو کي (۲) پر مجتهد باندې اجتهاد واجب گڼو (۳) او په غیر مجتهد باندي د داسي مجتهد تقلید واجب گڼو چې د هغه مجتهد والی په شرعي دلیل سره ثابت وي (۴) او مذهب ئي مکمل مدون وي (۵) او مذهب ئي متواتر وي.

د دي دعوی په لیکلو سره ډېر اعتراضات دفع شول مثلاً (۱) که غیر مقلد وائي چې تاسو په عقائدو کي دچا په مذهب ئي؟ نو جواب وشو چې د عقائدو مسائل اجتهادي او غیر واضح نه دی نو په عقائدو کي تقلید نه دی واجب او داشعري او ما تریدي نو مونه نسبتي دي لکه د افغاني او پاکستاني او دا نسبت دي امامانو ته له دي وجهي کیږي چې دعقائدو تدوین د هرچا څخه مخکي دوی کړی دی.

(۲) که غیر مقلدین ووائي چې تاسي دامام صاحب په مذهب یاست نو امام صاحب دچا په مذهب دی؟ نو داسوال دفع شو ځکه چې امام صاحب مجتهد دی په هغه خو اجتهاد واجب دی تقلید پرې نه دی واجب دا داسي سوال دی لکه یو څوک په گاډي کي ناست دی او وائي چې مونږه ډرایور سورلي یو نو ډریوار دچا سور لی ده؟ یا یو سړی ووائی چې مونږه خو په جامع مسجد کې د امام پسي اقتدا کړي ده نو امام په چاپسي اقتداء کړي ده؟

(۳) که غیر مقلد ووائي چې تاسي ولي له ژوندي ملا څخه پوښتنه نه کوي؟

نو جواب وشو چې زه له داسي کس څخه توضیح طلبوم چې مجتهد وي، که غیر مقلد دعوه وکړي چې زمونږ فلان ملا هم مجتهد دی نو ته به ورته ووائي چې ته دخپلو اصولو مطابق د دي ملا مجتهد والی صرف په آیت او یا صرف په حدیث کي را وښایه، که غیر مقلد ووائي چې ته دامام صاحب مجتهد والی په دلیل شرعی باندی ثابت کړه نو ته به ورته دخپلو اصول مطابق جواب ورکړي چې زما اصول څلور دي او دامام صاحب مجتهد والی په اجماع دفقهاؤ او د محدثینو باندي ثابت دی

(۴) که غیر مقلد سوال وکړي چې ته ولې د ابو بکر صدیق رضي الله عنه یا د حضرت عمر رضي الله عنه په مذهب نه ئي؟ امین الله لیکي چې ته ولي داویس قرني په مذهب نه ئي؟ نو جواب وشو چې د دوي مذهبونه مکمل مدون شوي نه دي بلکه هغوي په جهادونو مصروف وو تدوین ته وزگار نه وو بیا هم که تاسو سر زوري

کوی نو زه به د فقهی دیو کتاب د یوي صفحي یو څه مسائل درته ذکر کړم او تاسو له حوالي سره د هري مسئلي په اړه د ابو بکر صدیق مذهب یا د حضرت عمر مذهب پکی راته بیان کړي ، (۵) که غیر مة لد سوال وکړي چې ته حنفی ولي یي ځکه نور مذاهب خو هم شته شافعي جوړ شه حنبلي جوړ شه؟

جواب: په تاریخ د اسلام کي چې د کله نه اسلام دې ملکونو ته راغلی دی تمام مدارس او مفتیان او کتابونه د امام صاحب رحمه الله د مذهب چلیږي نو دلته د امام صاحب مذهب متواتر دی او د امام مالک ،امام شافعی او امام احمد رحمهم الله مذهبونه متواتر ندي او مونږ په دعوه کې دا ویلي وه چې د مجتهد مذهب به متواتر وي.

## دلائل علی الدعوی

### اول دلیل:

الله جَلَّ جَلَالُهُ فرمایي: [یا أَیُّهَا الَّذِینَ آمَنُوا أَطِیعُوا اللَّهَ وَأَطِیعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنْكُمْ]

ای هغو کسانو چې ایمان مو راوړی دی (ای مؤمنانو) اطاعت (تقلید او اتباع) وکړئ تاسي د الله او تقلید او اطاعت او اتباع وکړئ د رسول الله ﷺ او تقلید ،اتباع او اطاعت وکړئ د اولوالامر (د علماؤ، فقهاؤ او مجتهدینو).

په دې آیت کې ۱ – په (اطیعوالله) کې د کتاب الله ذکر دی او ۲ – په (اطیعوالرسول) کې د سنتِ رسول الله ذکر دی. او ۳ –په ( اولی الامر ) کې د اجماع ذکر د ی . ۴ –او په ( فان تنازعتم فی شيئ ) کې د قیاس ذکر دی. [ تفسیر کبیر / ج ٤ / ص ١١٣ / مکتبه دار احیاءالتراث العربي / و ج ١٠ / ص ١٦٤ فی بعض المطابع ].

په دې مذکوره آیت کې د الله جل جلاله د اطاعت ذکر دی او د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم د اطاعت ذکر دی . او د اولوالامر د اطاعت ذکر دی . د اولوالامر د اطاعت له پاره درې شرطه دی: لومړی دا چې: مسلمان به وي، لکه څرنګه چې په همدې آیت کې د ( منکم ) په لفظ کې ورته اشاره کوي. د غیر مسلم اطاعت ناجایز او ګناه ده.

دوهم داچي كله چي صاحب د امر د الله جل جلاله او د الله د پيغمبر صلى الله عليه وسلم څخه نافرماني كوي نو بيا يې هم اطاعت كول ناجايز او گناه ده. رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي چې: (فاذا امر بمعصية فلاسمع ولا طاعة). [ بخاري / ج ۲ / ص۱۰۵۷].

دريم داچي: صاحب امر به د الله جل جلاله او د الله د پيغمبر صلى الله عليه وسلم اطاعت كوي. نو په دې صورت كې نه يوازې داچې اطاعت يې جايز دى بلكې د دې آيت مطابق واجب دى. پاتې شوه دا خبره چې د (اولى الامر) څخه څوک مراد دي؟ نو په اصولي توگه له دې څخه دوه قسمه خلک مراديږي: ۱-علماء او فقهاء. ۲-أمراء د جيوشو او مُطلق حُكّام. كه اول قسم خلک ترينه مراد شي نو بيا زمونږ دعوى ورڅخه صراحتاً ثابتيږي.

## اول قسم

كومو صحابه وو چې د (اولى الامر) څخه فقهاء مراد كړي دي په هغوى كې حضرت جابر بن عبد الله رضى الله عنه، عبد الله بن عباس رضى الله عنه دي. د حضرت جابر بن عبد الله رضى الله عنه الفاظ داسې دي: (اولى الامر منكم قال الفقه والخير) [مستدرک / ج ۱ / ص ۱۲۳]. او د حضرت عبد الله بن عباس رضى الله عنهما الفاظ داسې دي: ( يعني اهل الفقه والدين (الى ان قال) فأوجب الله طاعتهم) [مستدرک / ج ۱ / ص ۱۲۳]. او د صحابي د تفسير په باره كې علماء كرام لاندې نظر لري چې: (تفسير الصحابى مسند، تفسير الصحابي حجة، تفسير الصحابى مرفوع. [توجيه النظر / ص ١٦٥ / طبع مصر / مستدرک / ج ۱ / ص ۱۲۳ / معرفة علوم حديث / ص ۲۰ / زاد المعاد / ج ٤ / ص ٥٢/ تدريب الراوى / ص ٦٥ / الجنة لنواب صديق حسن خان / ص ۹٦].

يعني د صحابي رضى الله عنه تفسير د رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان وي. او د صحابي تفسير حجت دى. او د صحابي تفسير مرفوع دى.

نو د اولى الامر څخه د فقهاوو مرادول د مذكورې قاعدې مطابق د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمان شو او په تابعينو كې چې كومو حضراتو د ( اولى الامر ) څخه فقهاء مراد كړي دي په هغوى كې حضرت عطاء بن ابى رباح، حضرت حسن بصرى، امام مجاهد، قتاده او ابن ابى ليلى رحمهم الله دي.

په [ دارمی / ص ۴۰ / طبع هند و طبع دمشق / ص ۷۲ ] کې د حضرت عطاء بن ابی رباح الفاظ داسې دي چې: ( اولی الامر ، اولوالعلم والفقه ).

او امام ابوبکر جصاص الرازی المتوفی (۳۷۰ هـ) د دې صحابه وو او تابعینو تفسیر په داسې الفاظو سره ذکر کوي چې: (فروی عن جابر بن عبدالله رضی الله عنه و عبدالله بن عباس رضی الله عنهما روایة، والحسن، وعطاء، و مجاهد انهم اولوالفقه والعلم . و عن ابن عباس روایة وعن ابی هریرة انهم أمراءالسرایا و یجوزان یکونوا جمیعاً مرادین ). [احکام القرآن / ج ۲/ ص ۲۱۰ ].

او په بل ځای کې لیکي چې: (قال الحسن ، وقتادة و ابن ابی لیلی : هم اهل العلم والفقه). [احکام القرآن / ج ۲/ ص ۲۱۵ ].

او علامه الوسی رحمه الله فرمايي: (وقیل المراد بهم اهل العلم و روی ذلک غیر واحد عن ابن عباس، و جابر بن عبدالله، و مجاهد والحسن و عطاء وجماعة، واستدل علیه ابوالعالیه بقوله تعالی: ( ولو ردّوه الی الرسول و الی اولی الامر منهم لعلمه الذین یستنبطونه منهم ..... الایة) فان العلماء هم المستنبطون المستخرجون للاحکام ). [ روح المعاني / تحت هذه الایة / ج ۵ / ۶۵ ].

یعنې په دې صحابه وو رضی الله عنهم او تابعینو رحمهم الله کې حضرت ابو العالیه د ( القرآن یفسر بعضه بعضاً ) مطابق فرمايي چې: له دې څخه فقهاء مراد دي، ځکه چې الله تعالی جل جلاله په بل ځای کې فرمايي : ( و اذا جاءهم أمر من الامن او الخوف اذاعوا به و لو رُدّوه الی الرسول و الی اولی الامر منهم لعلمه الذین یستنبطونه منهم .... الایة ) نو (الذین یستنبطونه) د ( اولی الامر ) تفسیر دی، نو معلومه شوه چې د ( اولی الامر ) څخه فقهاء مراد دي.

نورې هم ډېرې حوالې شته. په تفسیر معالم التنزیل / ج ۲ /ص ۴۹۴ کې او په تفسیر کشاف / ج ۱ / ص ۳۷۰ کې / تفسیر ابن کثیر / ج ۲ / ص ۴۹۷ کې او نورو ډېرو تفاسیرو کې د ( اولی الامر ) مصداق فقهاء ګرځولی شوي دي.

اِنَّمَا اَقُوْلُ بِرَاْئِیْ (۲٦)

۳. دیمن خلکو دمعاذ ﷺ تقلید شخصي کولو.

۴. دبصرې صحابه وو ﷺ اوعامو خلکو دانس ﷺ تقلید شخصي کولو.

۵. دکوفې خلکو دعبدالله بن مسعود ﷺ تقلید شخصي کولو، دعبدالله بن مسعود ﷺ منشور داوو: فَمَنْ عَرَضَ لَه مِنْكُمْ قَضَاءٌ فَلْيَقْضِ بِمَا فِيْ كِتَابِ اللهِ فَإِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضٰى بِه نَبِيُّهُ فَإِنْ جَاءَ اَمْرٌ لَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلَاقَضٰى بِه نَبِيُّهُ فَلْيَقْضِ بِمَا قَضٰى بِه الصَّالِحُوْنَ، فَإِنْ جَاءَ اَمْرٌلَيْسَ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَلَاقَضٰى بِه نَبِيُّهُ ﷺ وَلَاقَضٰى بِهِ الصَّالِحُوْنَ فَلْيَجْتَهِدْ بِرَاْيِه (۲۷) (والحدیث جید)

ددارمي الفاظ داسې دي:

٦. فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْمَا اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُوْنَ فَاجْتَهِدْ بِرَأْيِكَ (ج۱ ص٦۱)

وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ ﷺ اِنَّهُ قَالَ فِيْ غَيْرِ مَا مسئلة اَقُوْلُ فِيْه بِرَأْيِ (۲۸)

یعنې اول فیصله په کتاب الله ده، بیا په سنت الرسول ده بیا په اجماع دصحابه وو ده که دې کې پیدانشوه بیا حکم اوفیصله په خپل اجتهاد ده. نو درسول الله ﷺ نه وروسته ددغو صحابه وو تقلید کېدو دصحابه وورض نه وروسته دتابعینو زمانه شوه. شاه ولی الله فرمایي: فَعِنْدَ ذٰلِكَ صَارَ لِكُلِّ عَالِمٍ مِنَ التَّابِعِيْنَ مَذْهَبٌ عَلٰى حِيَالِه فَانْتَصَبَ فِيْ كُلِّ بَلَدٍ اِمَامٌ (۲۹)

یعنې هرتابعي عالم ځانته مذهب جوړ کړو اوپه هرښار کې یو یو تابعي عالم امام جوړ شو. صدر الائمه مکي فرمایي: چې یوه ورځ حضرت عطاء دخلیفه هشام بن عبدالملک په خدمت کې حاضر شو خلیفه ترېنه پوښتنه وکړه، چې ته داسلامي ښارونو امامان پېژنې؟ حضرت عطاء وویل هو!

۱. دمدینې منورې دخلکو امام حضرت نافع رَحِمَهُ اللّٰهُ دی.

۲. دمکې مکرمې دخلکو امام حضرت عطاء رَحِمَهُ اللّٰهُ دی.

---

۲٦ - جامع بیان العلم ج۲ص ۵۸. بیهقي ج۱ص ۱۵۵.

۲۷ - نسائی ص ۲٦۴ باب الحکم باتفاق اهل العلم.

۲۸ - جامع بیان العلم ج۲ص۵۷

۲۹ - الانصاف ص٦

۳. ديمن دخلکو امام حضرت طاوس رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

۴. ديمامې دخلکو امام يحيى ابن کثير رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

۵. دشام دخلکو امام حضرت مکحول رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

٦. دعراق دخلکو امام حضرت ميمون بن مهران رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

۷. دخراسان دخلکو امام حضرت ضحاک بن مزاحم رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

۸. دبصرې دخلکو امام حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللَّهُ دی.

۹. دکوفې دخلکو امام حضرت ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللَّهُ دی.(۳۰).

نوهيڅ دورپه تاريخ داسلام کې داسې ندي تېرشوي چې صرف يوکس دې په کې غير مقلد وي.

**امام غزالي رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي:**

په تقليد باندې دټولو صحابه وو اجماع ده، اود صحابه وو په دورکې دا په تواتر ثابت وو (۳۱)

شاه ولي الله رَحِمَهُ اللَّهُ دشيخ عزالدين بن سلام رَحِمَهُ اللَّهُ نه نقل کوي:

اَنَّ النَّاسَ لَمْ يَزَالُوْ عَنْ زَمَنِ الصَّحَابَةِ رض اِلَی اَنْ ظَهَرَتِ الْمَذَاهِبُ الاَرْبَعَة يُقَلِّدُوْنَ مَنْ اِتَّفَقَ مِنَ الْعُلَمَاءِ مِنْ غَيْرِ نَكِيْرٍ مِنْ اَحَدٍ يِعْتَبِرُ اِنْكَارُهُ وَلَوْكَانَ ذَلِكَ بَاطِلاً لاَنْكَرُوْهُ (۳۲).

بيا فرمايي: فَهَذَا كَيْفَ يُنْكِرُهُ مَعَ اَنَّ الاِسْتِفْتَاءُ لَمْ يَزَلْ بِيْنَ الْمُسْلِمِيْنَ مِنْ عَهْدِالنَّبِيِّ ﷺ وَلافَرْقَ بِيْنَ اَنْ يَّسْتَفْتِيَ هَذَا دَائِمًا وَيَسْتَفْتِيَ هَذَا حِيْناً بَعَدَ اَنْ يَّكُوْنَ مُجْمَعُ عَلَى مَاذَكَرْنَا(۳۳)

يعنې دصحابه وو (رض) د دور څخه تقليد شروع دی اودهغه وخت څخه تر شاه ولی الله پورې هيڅ غير مقلد نه وو بيا دې څلورو امامانو دصحابه ﷺ وو او د تابعينو رحمهم الله فتوې راجمع. مدونې يې کړې. اوترتيب يې ورکړو او په بعضو ځايونو کې يې خپل اجتهاد وکړو.

له دې وجهې ټول خلک په دې څلورو مذهبونو وو کې داخل شول.

---

۳۰ - مناقب موفق ص۷ج ۱ دا واقعه حاکم هم ذکر کړېده په معرفة علوم الحديث کې صفحه ۱۹۸.

۳۱ - المستصفی ج۲ ص۳۸۵.

۳۲ - عقد الجيد ص ۳٦

۳۳ - عقد الجيد ص ۳۹

لکه احاديث دصحابه وو اوتابعينو په دور کې وو لېکن بخاري اومسلم وغيره کتابونه نه وو. بيا روسته ماء بخاری، مسلم، وغيره دااحاديث مرتب کړه لدې وجهې ورته دبخاري ،مسلم، ترمذي وغيره حديث وايي حالانکه دصحابه کرامو ﷺ اوتابعينو په وخت کې نه بخاري وه نه مسلم اونه نور نو همداشان دڅلورو مذهبونو مسائل وو لېکن مرتب نه وو .بيا امام صاحب وغيره مجتهدينو مرتب کړل له دې وجې دې امامانو ته منسوبيږي.

## يوغټ دروغ

لامذهبان ليکي چې تقليد په څلورمه صدی کې پيدا شوي دی . لکه شاولی الله دهلوی رَحِمَهُ اللهُ چې فرمائی (اعلم ان الناس قبل الماة الرابعة غير مجمعين على التقليد الخاص لمذهب واحد) التحقيق السديد ص ۱۲۴ دوهمه چهپائی.

جواب (لعنة الله على الكذبين) ( لادين لمن لايادنة له) ( الفاجرخب لئيم ) تاسې مخکې واورېدل چې تقليد د صحابوو د زماني څخه راروان دی. د زيات تاييد لپاره به زه ددير اختصار سره دکتبو داسماء الرجالو څخه ديوڅو مقلدينو شيوخونو مونه وليکم چې دڅلورمی صدی څخه مخکې تيرشوی دی.

۱. قاضی اسماعيل بن النسفی الکندی الحنفی المتوفی بعد (۱۶۴هـ) په (۱۶۴هـ) کې دمصر قاضی وو (الجواهر المضيه ج ۱ ص ۱۶).

۲. امام ليث بن سعد الحنفی ديرلوی محدث وو (تهذيب التهذيب ج ۸/ ص ۴۶۱) غيرمقلد نواب صديق حسن خان ليکی چې (وی حنفی مذهب بود وقضائی مصرداشت) اتحاف ص ۲۳۷).

۳. امام عبدالله بن المبارک المتوفی (۱۸۱ھ) چې امام حافظ اوشيخ الاسلام وو تذکرة الحافظ ج ۱/ ص ۳۵۳) دافرمائی چې ماسره دامام ابوحنيفه رحمه الله فقه ده (تاريخ بغداد ج ۱۳/ ص ۳۵۵ مناقب موفق ج ۱/ ص ۲۲۶ و ص ۱۳۳ شرح الموطاج ۷/ ص ۳۰۰).

۴. الامام وکيع بن الجراح المتوفی (۱۹۷ھ) حنفی المذهب وو (جامع بيان العلم ج ۲/ ص ۱۴۹ تذکرة ج ۱/ ص ۲۷۲ تهذيب التهذيب ج ۱۱/ ص ۱۲۷).

۵. امام یحی بن سعید القطان المتوفی (۱۹۸ھ) حنفی المذھب وو (تذکرہ ج ۱/ ص ۲۸۲ تہذیب ج ۱۰/ ص ۴۵۰ الجواھر المضیہ ج ۲/ ص ۲۰۹ تاریخ بغداد ج ۱۳/ ص ۴۵۴)

٦. امام یحی بن زکریا بن ابی زایدہ المتوفی (۱۸۲ھ) حنفی المذھب وو (تذکرہ ج ۱/ ص ۲۴۶ مفتاح السعادۃ ج ۲/ ص ۱۱۹).

۷. امام یحیی بن معین المتوفی (۲۳۳ھ) حنفی المذھب وو (فیض الباری ج ۱/ ص ۱۶۹ مقدمۃ نصب الرایہ ص ۴۲ تاریخ بغداد ج ۱۳/ ص ۳۴۷).

۸. خلیفہ جعفر بن معتصم الملقب بالمتوکل علی اللہ المتوفی (۲۴۶ھ) اولنبی خلیفہ وو چی چې دامام شافعی رحمہ اللہ پہ مذھب وو تاریخ الخلفاء سیوطی (ص ۳۵۹).

۹. امام عبدالغفار بن داود الحرانی المتوفی (۲۰۴ھ) حنفی المذھب وو (تہذیب التہذیب ج ۶/ ص ۳۶۶).

۱۰. امام عبدالملک بن حبیب المتوفی (۲۳۹ھ) مالکی المذھب وو تذکرہ ج ۲/ ص ۱۰۷.

۱۱. امام اسماعیل القاضی المتوفی (۲۸۲ھ) شیخ المالکیۃ بالعراق تذکرۃ (ج ۲/ ص ۱۸۰).

۱۲. امام احمد بن محمد بن الاثرم المتوفی (۲۶۰ھ) حنبلی المذھب وو تذکرۃ (ج ۲/ ص ۱۳۵).

۱۳. الامام المیمونی ابو الحسن احمد بن عبدالحمید المتوفی (۲۷۴ھ) من کبار اصحاب محمد تذکرۃ (ج ۲/ ص ۱۶۲).

۱۴. امام حرب بن اسماعیل الکرمانی المتوفی (۲۸۰ھ) حنبلی المذھب وو تذکرۃ (ج ۲/ ص ۱۷۰).

۱۵. امام ابوبکر احمد بن محمد المروزی المتوفی (۲۷۵ھ) حنبلی المذھب وو (تذکرۃ ج ۲/ ص ۱۸۵).

۱٦. امام بخاری رحمہ اللہ المتوفی (۲۷۷ھ) شافعی المذھب وو طبقات شافعیہ (ج ۲/ ص اتا ۱۹) غیر مقلد نواب صدیق حسن خان ھم ورتہ شافعی ویلی دي ابجد العلوم (ص ۸۱۰).

۱۷. امام محمد بن نضر المتوفی (۲۹۱ھ) ددہ تہول خاندان حنفی المذھب وو (تذکرۃ ج ۲/ ص ۲۲۰).

۱۸. امام محمد بن شعیب النسائی المتوفی (۳۰۳ھ) شافعی المذھب وو (اکمال ص ۲۲۷).

۱۹. امام محدث ابوعوانہ المتوفی (۳۱۶ھ) شافعی المذھب وو (تذکرۃ ج ۳/ ص ۳).

۲۰. امام طحاوی المتوفی (۳۲۱ھ) حنفی المذهب وو (تذکرۃ ج ۳/ ص ۷) که دڅلورمی صدی ځنه دمخکنیو مقلدینو شیوخو نومونه څوک لیکل غواړي نوپوره کتابخانه به ترینه جوړه شی.

۲۱. په (۲۲۸ھ) کښې خلیفه واثق بالله العباس دسد سکندر دحال دمعلومولو لپاره یو هیت ولیگلو هغوی چې هلته ورسیدل نو دسد سکندر خوا او شاوخوا خلک دامام ابوحنیفه رح په مذهب وو دغیر مقلدینو سرگروه نواب صدیق حسن خان غیرمقلد دمسالک الممالک په حواله لیکلی دی چې (محافظان سد که درآن جابودند همه دین اسلام داشتند ومذهب حنفی وزبان عربی وفارسی میگفتند اما ازسلطنت عباسیه بی خبربودند (ریاض المرتاض ص ۳۱۶ خیر التنقید ص ۲۳).

۲۲. دغیرمقلدینو سرگروه نواب صدیق حسن خان لیکلی دی چې نشا ابن شریح فاسس قواعد التقلید (الی ان قال) ولذلک یعد من المجددین علی راس المائتین (الجنه ص ۳۹) امام ابن شریح همت وکړو او دتقلید دقواعدو بنیادئی کیښودلو لدی وجهی هغه ددوهمی صدی په مجددینو کښې شمارل کیږی که دڅلورمی صدی څخه مخکښې تقلید نه وی نو امام ابن شریح دکوم ضرورت لپاره دتقلید لپاره قواعد وضعه کول؟

## دشاولی الله رحمه الله دقول مطلب

داخبره پوره واضحه شوه چې دڅلورمی صدی څخه مخکښې تقلید و وخپله شاولی الله رحمه الله په بل ځای کښې فرمائی (وبعد المائتين ظهر فيهم التمذهب للمجتهدين باعيانهم وقل من كان لايعتمد على مذهب مجتهد بعينه وكان هذا هو الواجب فى ذلك الزمان (انصاف مع ترجمه اردو کشاف ص ۵۹) ددوهمی صدی څخه وروسته په خلکو کښې دیو معین مجتهد دمذهب اختیارول ظاهرشو او په هغه وخت کښې داسې خلک ډیرلږ وو چې دیو معین مجتهد په مذهب به ئی اعتماد نه کولو او په هغه وخت کښې دیو معین مذهب پابندی واجبه وه نوشاولی الله نه یوائې داچه دڅلورمی صدی څخه مخکښې تقلید ته رایج وائی بلکه واجب ورته وائی نوشاولی الله رحمه الله دخبری څخه دامطلب اخستل چې دڅلورمی صدی څخه مخکښې تقلید نه وو بالکل غلط دی اودیولوی محدث په قول کښې تعارض راویستل دی نودشاولی الله رحمه الله دقول معنی خپله دده داقوالو څخه داراظاهریږی چې دڅلورمی صدی څخه مخکښې دکوم خاص مذهب په تقلید باندې اجتماع نه وه یعنی تقلید و ولکن متفرق او متعدد وو چابه دیو مجتهد او چابه دبل مجتهد تقلید کولو او په بعضو کښې به چې داجتهاد اهلیت وو هغوی به خپله اجتهاد کولو او وروسته چې علمی کمزوری پیدا شوی نو بیا خلک دیو خاص خاص مذهب

پابند شو لکه شاولی الله رحمه الله چې په بل ځای کې فرمائی (واعلم ان الناس کانوا فی المأة الاولی والثانية غیر مجتمعين على التقليد لمذهب واحدبعينه) (انصاف ص ۵۷) پوه شه چې په اوله او دوهمه صدی کې په یو خاص معین مذهب باندې د خلکو اجتماع نه وه نو مخکې د ډیرو مجتهدينو تقليد کيدلو لکن د هغوی مذاهب مدون نه شول او نه چاته معلوم دی لدی وجهې اوس د دی څلورو مدونو مذاهبو تقليد کيږی.

امين الله د تقليد پر خلاف یو ګرنګ ليکلی دی په نوم التحقيق السديد د دې کتاب په ۲۴ صفحه کې يې ليکلي دي چې ايوب سختيانی په تقليد رد کړی دی حالانکه ايوب سختياني په ۱۳۱ هجري کی تير شوی دی نو چې تقليد نه وو نو څرنګه ئي په تقليد رد وکړو آيا علم غيب ورسره وو چې وروسته به تقليد پيدا کيږي؟

همدارنګه په الحق الصريح کی ديو صحابي واقعه رانقلوي چې يو صحابی ته نورو صحابه وو فتوی ورکړه چې ته اګر چې زخمي ئي لکن تاته له جنابت څخه د تيمم اجازت نشته نو ته غسل وکړه هغه صحابي چې کله غسل وکړو نو وفات شولو نو امين الله ليکي چې دغه صحابي د دی نورو صحابه وو تقليد وکړو نو څکه مړ شو (ج۲ صفه ۶۵۵)

نو چې د صحابه وو په زمانه کې تقليد نه وو دې صحابي بيا څنګه تقليد وکړو؟ همدارنګه ته تقليد ته شرک وائي نو د دی صحابی په باره کې څه فتوی ورکوي؟ مونږ وايو چې دې وفات شوي صحابه (رض) دغير مجتهدينو څخه فتوي غوښتې وه نو رسول الله (ص) په دې باندې خفه شو او وی فرمايل چې دوی نه پوهېدل نو ولې يې پوښتنه نه کوله او مونږ د مجتهدينو پيروی ته واجب وايو.

## اعتراض : دين مکمل دی نو فقهې ته څه ضرورت دی؟

دوي وائي چې الله تعالي فرمائي چې [اَلۡيَوۡمَ اَكۡمَلۡتُ لَكُمۡ دِيۡنَكُمۡ (الايه)] يعني دين مکمل شو نو بيا امام صاحب ته څه ضرورت دی؟

(۱) جواب: د دین له تکميل څخه تکميل د اصولو مراد دی.

(۲) جواب الزامی: که د تکميل څخه معنی حقيقي مراد شي چې بس په همدغه ورځ دين مکمل شو نو بيا خو له هغو آياتونو څخه چی له دي آيت څخه وروسته نازل شوي دي هم منکر شه او همدارنګه له ټولو هغو احاديثو څخه چې وروسته له دي نه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائيلي دي هم منکر شه همدارنګه نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمائي چې (عليکم بسنتی وسنة

الخلفـاء الراشـدين) نو دخلفاؤ لـه سنتو څخـه هـم منکر شـه لکـه څرنګه چې منکـر ئـي همدا رنګه لـه دی څخـه وروسـتـه چې کـومي سنت طريقـي صحابهؤ طرف تـه منسـوبي دي او مروجـه فـي الامـة دي لـه دي څخه هم منکر شه ،

(۳) جواب: د تکميل څخه معنی عرفي مراد ده لکه له اليوم څخه چې معنی عرفي مراد ده،

داول جواب تشريح داده چی د اصولو تکميل مراد دي هغه دا چې قرآنکريم کي اصول د شرعي څلور ذکر شوي دي

اول: کتاب الله دی الله جل جلاله فرمائي [ اِتَّبِعُوا مَا أُنزِلَ إِلَيكُم مِن رَبِّكُم وَلَا تَتَّبِعُوا الآيـه] دا کتاب الله شو .

دوهم: قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ اللَّهَ فَاتَّبِعُونِي يُحْبِبْكُمُ اللَّهُ آه] دا سنت رسول شو.

دريم: [ وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ ما تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَى] دا اجماع شوه.

څلورم: [فَاعتَبِرُوا يَا أُولِي الأَبصَار] دا قياس شو .

دا څلور اصول په قرآن کي راغلل دا څلور اصول په حديث کي هـم دي نو نبـوي او قرآنـي اصـول دا څلـور دي او س د دي څلـورو قرآنـي اصـولو څخـه ثابـت شـده مسـائلو تـه ديـن وائـي او د دی څلـورو نبـوي اصـولو څخـه ثابت شـده مسـائلو تـه ديـن وائـي او دا ديـن پـه فقـه کي ليکـل شـوی لـه قـرآن څخـه ثابت شده مسـئلي ديـن دی او دا مسـئلي پـه فقـه کی ليکـل شـوی دي او لـه سنت څخـه ثابـت شـده مسـئلي ديـن دی او دا مسـائل پـه فقـه کـي ليکـل شـوي دي لـه اجمـاع څخـه ثابـت شـده مسـائل ديـن دی او دا مسـائل پـه فقـه کـي ليکـل شـوي دي لـه قيـاس څخـه ثابت شـده مسـائل ديـن دی او دا مسـائل پـه فقـه کـي ليکـل شـوي دي خلاصـه دا چې ديـن پـه فقـه کې ليکـل شـوی دی نـو چې يـو سـړی وائـي ديـن مکمـل شـو فقهـي تـه ضرورت نشـته دا داسي ده لکه چې وائي دين مکمل شو نو دين ته ضرورت نشته دی.

## اعتراض: صاحبين ولې د امام صاحب سره اختلاف کوي؟

غير مقلدين وائي چې په فقه کي له امام صاحب سره صاحبين (امام ابو يوسف او امام محمد) اختلاف ولي کوي ؟ او امين الله په خپل کتاب کي ليکي چې فقه خو ټوله صاحبينو ورانه کړي ده ؟

(۱)جواب: صاحبین هم مجتهدین دي او یو مجتهد ته له بل مجتهد سره اختلاف کول جائز دي که دا اختلاف دمجتهدینو د دین ورانول وای نو بیا دسلیمان او داود علیهما السلام په مابین کي هغه اختلافي مسئله راغله لکه الله تعالی چې فرمائي[ فَفَهَّمْنَاهَا سُلَيْمَانَ آه] نو ایا بیا دلته هم سلیمان علیه السلام د داود علیه السلام دین وران کړو؟

(۲) جواب: دصاحبینو ټول اقوال په حقیقت کي دامام صاحب اقوال دي علامه شامی درد محتار په مقدمه کي لیکي چې که په یوه مسئله کي یو قول دامام صاحب یعني داستاد راغلو او بل قول د ده د شاګرد راغلو نو دغه د شاګر قول په اصل کي د استاد قول دی شاګرد ته ئي نسبت صرف د موافقت د رأي له وجه کیږي

په فتاوی والوالجیه کتاب الجنایات کي لیکي چې( قال ابو یوسف رحمه الله ماقلت قولاً خالفتُ فیه أبا حنیفة رحمه الله الا قولاً قد کان قاله) یعني اما أبو یوسف فرمائي چې ما هیڅ کله له امام صاحب سره مخالفت په یو قول کی هم نه دی کړی مګر مخکی دا قول دامام صاحب قول وو زما صرف د رأی موافقت ورسره راغلی دی.( رد محتار ج۱ صفه۱۵۹) مطلب (صح عن الامام انه قال اذا صح الحدیث فهو مذهبی؛

**اعتراض: غیر مقلدین وائي چې امامانو خپله له تقلید کولو نه منع کړي ده؟**

جواب: ابن تیمیه رحمه الله لیکي چې (منع الأئمة عن التقلید انما هو فی حق القادر علی اخذ الاحکام عن الادلة) یعنی ابن تیمیه رحمه الله فرمائي چې امامانو کومه منعه دتقلید څخه کړي ده هغه دمجتهدینو په باره کي ده چې مجتهدین دي تقلید دچا نه کوی بلکه خپل اجتهاد دې کوي (فتاوی ابن تیمیه ج۲ صفه۲۰۳)

**اعتراض: چې امام صاحب خپله فرمائي( اذا صح الحدیث فهو مذهبی)**

یعنی چې کله حدیث صحیح وي نو دا زما مذهب دی هم دا رنګه نور امامان هم وائي چې که زمونږ مسئله دحدیث خلاف وه نو پر دیوال ئي وولـه نو پر حدیث باندې عمل کول پکار دي نه دامام صاحب په مسئله باندي؟

جواب: دا خطاب مجتهد ته دی د دي مثال دا رنګه دی چې یو سپیشلسټ ډاکټر تاته دوائي در کړی او درته ووائي چې که څما دوائي غلطه وه نو په دیوال ئي وولـه او س په کوڅه کي تاته یو چولي فروش ووائی چې لما سره دطب کتابونه شته دا دوائي خو ئي غلطه در کړي ده نو ته ي بیرته هغه ډاکټر ته ویسې او ورته ووایې چې دا دوائي خو هغه چولي فروش وائي چې غلطه ده نو دا ډاکټر به درته ووائي چې احمقه بل ډاکټر ته یې

وروره چولې فروش په څه پوهېږي علماء فرمايي چې دا اذا صح الحديث فهو مذهبی معنی داسې ده چې اذا صلح الحديث للعمل به فهو مذهبی شرح رسم المفتی (۲۴) لابن عابدين المطبوعة فی ضمن مجموع رسايل تهذيب الاسماء واللغات ج(۱) ص ۵۱ للنووي.

نړيوال محقق محمدعوامه پدې موضوع باندې رساله ليکلې ده په نوم د اثر الحديث الشريف په اتړنې کې شته.

**اعتراض:غير مقلدين وائي چې امام صاحب چرته ويلي دي چې زما تقليد وکړي؟**

جواب: په کفايه شرح الهدايه کتاب الصوم کي امام صاحب رحمه الله فرمائي (واذا كان المفتي على هذه الصفة فعلى العامي تقليده وان كان المفتي اخطأ فى ذالک هکذا روي الحسن عن ابي حنيفة رحمه الله) وفی هداية الصلوة ج۱ في باب ما يوجب القضاء والکفارة صف۲۶٦ کې فرمايي: على العامي الاقتداء بالفقهاء.

د دي مذکور سوال مثال داسی دی لکه يو ډاکټر چې هسپتال جوړ کړی مشينان راوړی او ټيسټخاني جوړی کړی او اعالی مرتبه والا ډاکټران راولي : اوس يو احمق وائي چې زه خو ناجوړه يم خو هسپتال ته نه ورځم ځکه چې ډاکټر ماته ندی ويلي اعلان ئي نده کړی چې زما هسپتال ته راشي، نو دا مريض ډير احمق دی ځکه چې هسپتال ئي دهمدي دپاره جوړ کړی، نو امام صاحب دا اجتهاد د مسائلو ولي کولو چې بيائي منعه کوله د تقليد خپل ځخه خو دهمدي لپاره ئي اجتهاد وکړو چې تقليد ئي وشي.

**اعتراض: په څلورو کې کوم مذهب حق دی ؟**

غير مقلدين وايي چې کله په يوه مسئله کي دڅلورو امامانو اختلاف راشي نو په دوي کي به يو پرحق وي ځکه چې حق يو وي او تاسو وايي چې څلور واړه مذهبونه حق دي.

جواب: دلته حق په مقابل دباطل کی ندی بلکه حق په مقابل د خطأ کي دی دا مطلب چې يو به حق وي او دا نور به خطأ وی کوم چی په حق وي ديته به الله دوه اجره ورکوي او کوم چی په خطأ وي هغوی ته به الله يو اجر ورکوي د دی مسئلي لپاره دليل او دتقليد دوجوب لپاره بل دليل دا حديث مبارک دی.

عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللَّهِ -صلى الله عليه وسلم- قَالَ « إِذَا حَكَمَ الْحَاكِمُ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَصَابَ فَلَهُ أَجْرَانِ.وَإِذَا حَكَمَ فَاجْتَهَدَ ثُمَّ أَخْطَأَ فَلَهُ أَجْرٌ [رواه البخاری رقم : ۷۳۵۲ فی باب أَجْرِ

الْحَاكِمِ إِذَا اجْتَهَدَ فَأَصَابَ ، أَوْ أَخْطَأَ.و مسلم ج۲ ص ٧٦ رقم : ٤٥٨٤ ، سنن أبي داود رقم: ٣٥٧٦ ، سنن الترمذي رقم: ١٣٢٦ و قال الشيخ الألباني : صحيح]

يعني كله چې حاكم حكم وكړي پس اجتهاد وكړي بيا حق ته ورسيږي پس د ده لپاره دوه اجره دي او چې كله حاكم حكم وكړي پس اجتهاد وكړي بيا خطاء شي نو د ده لپاره يو اجر دي.

دا دليل دى پر وجوب د تقليد باندې . په اجتهادي مسئله كي كه يو مجتهد پر حق وو دا بل مجتهد به خطاء وي باطل نه ورته ويل كيږي نو څلور واړه په حقه دي يعني څلور واړه ثواب يافته دي اگرچې يو به صواب او بل به خطأ وي.

**اعتراض: غير مقلد وايي چې زه اهل الحديث يم او په قرآن او په حديث باندې عمل كوم ولي په قران او په حديث باندې عمل كول څه بد كار دى؟**

اول جواب: ستاسو مشران ورونه اهل القران پرويزيان وائى چې زه پر قرآن عمل كوم نو ولي پر قرآن باندې عمل كول څه بد كار دى؟فما هو جوابكم فهو جوابنا.

دوهم جواب: تا وويل چې مونږ اهل حديث په قران او په حديث باندې عمل كوو او دا څه بد كار دى؟ زه درته وايم چې دا اوس مې درته شپږ (۶) آيتونه د تقليد پيش كړل نو ته په دي ولي عمل نه كوي؟ : نو دا خو ستا په قران او په حديث باندې عمل نه كول دي. دا داسي مثال دى لكه يو سړى چې وائي زه قرآن منم او په قران كي چې كومه اجماع راغلي ده او كوم قياس راغلي دى دا نه منم نو دا خو د قران نه منل شوه نو ته دروغ وائي چې په قران باندى عمل كوم،

دريم جواب: صحيح ده په قرآن او په حديث باندى عمل كول ښه كار دى لكن دا ستاسي طريقه خرابه ده : ځكه چې په حديث باندې عمل كول د مجتهد په رهنمائي كي ښه كار دى او چې د مجتهد رهنمائى پكي نه وي دا بد كار دى: مثال لكه د طب كتابونه دي او دري بيماران ترېنه علاج كوى يو بيمار ئي په خپل سر كوي بغير له رهنمائي د ډاكټر څخه او خپله هم ډاكټر نه دى نو دا بد كار دى ،او بل بيمار د ډاكټر په رهنمائي كى علاج كوي دا ښه كار دى: او بل ئى ديو فالتو مداري په رهنمائي كي كوي نو دا هم بد كار دى اگر چې دري واړو خپل علاج د طب له كتابونو څخه وكړو همدا رنگه په قرآن او په حديث باندى عمل كول كه د مجتهد په رهنمائي كى وي دا ښه كار دى او كه د مجتهد په رهنمائي كې نه وي او يا د غير مجتهد په رهنمائى كى كوي

مثلاً دامين الله په رهنمائي کي نو دا بد او خطرناک کار دی نو دمجتهد له رهنمائي څخه بغير عمل کول داسي دی لکه چې يو سړي اودس مات کړو او بيائي وتر لمونځ شروع کړو يو چا پوښتنه ورڅخه وکړه چې تا خو اوس اودس مات کړو وتر څنګه کوي ؟نو هغه وويل چې ولې په حديث کي نه دي راغلي چې (من استجمر فليوتر) نو دابي وقوفي ده همدارنګه په صحاح سته او قرانکريم باندی په غير واضحو مسائلو کې عمل کول بغير دمجتهد د راهنمايي څخه ګناه ده وان اصاب. (نووي شرح مسلم ج۲ ص۷٦)

**اعتراض:** غير مقلدين وايي چې په قرآنکريم کي الله تعالی فرمائي {وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلاَ تَفَرَّقُوا} نو دين خو يو دی او څلورو امامانو پکي څلور حصي څلور ټوټي جوړی کړي؟

جواب: په اختلاف او په افتراق کي فرق دی : اختلاف دېته وايي چې مقصد يو وي او لاري بدلې وي، افتراق دېته وايي چې لاري هم بدلي وي او مقصد هم بدل وي نو دده څلورو امامانو دين جدا ندی بلکه دين او مقصد ئي يو دی صرف لاري ئي جدا دی افتراق خوئي ندی کړی چې هم لاري جدا وي هم مقصد جدا وي، په همدې جواب سره د دوي يو بل اعتراض دفع شو چې وائي محمد صلی الله عليه وسلم باندي خو يو دين نازل شوی ؤ څلور دينونه خو نه ؤو ؟ نو جواب ئي وشو چې دين يو دی صرف لاري ئي جدا دي .

**اعتراض : غير مقلدين وائي چې ته ديو امام پسې ځې او زه په څلورو امامانو پسې ځم؟**

الزامي جواب: ته خو تقليد ته شرک وائي نو زه چې په يو امام پسي ځم ماستا په فتوه يو شرک وکړو او ته چې په څلورو پسي ځې نو تا خو بيا څلور شرکه وکړه،

دوهم جواب: مونږ وايو (تتبع الرخص او تلفيق) اجماعاً حرام دی، چې په يوه مسئله کې په يو مجتهد پسي ځې او په بله مسئله کې د بل مجتهد په رأيه عمل کوې . علامه ابن تيميه فرمايي : ( فيکون فی وقت يقلدون من يفسده و فی وقت يقلدون من يصححه بحسب الغرض والهوی و مثل هذا لا يجوز باتفاق الائمة) [ مجموعة الفتاوی /۳۲/ ص ٦٦ / مکتبة العبيکان].

يعنې په داسې صورت کې به په يو وخت کې د هغه چا پسې روان وي چې دده اصلاح به کوي او په يو وخت کې به د هغه چا پسې روان وي چې دده افساد به کوي او د ټولو امامانو په اتفاق سره دا کار حرام دی.

همدارنګه ليکي چې : (لان ذلک يفتح باب التلاعب بالدين و فتح للذريعة الی ان يکون التحليل والتحريم بحسب الهوی، و لو جاز هواه ، و يتخير بين التحليل والتحريم والواجب والجواز ، و ذلک يؤدی

الى انحلال ربقة التكليف، بخلاف العصر الاول فانه لم تكن المذاهب وافيه باحكام الحوادث مهذبة فعلى هذا يلزمه ان يجتهد فى اختيار مذهب يقلده على التعين) [شرح المهذب / فصل فى اداب المستفتى / ج ۱ / ص ۸۸ / دار الفكر بيروت].

په يوه مسئله کې د يو امام پسې او په بله مسئله کې د بل امام پسې روانېدل په دين باندې لوبې دي، او ددې له پاره ذريعه ده چې هر سړی تحليل او تحريم د خپل خواهش تابع کړي. او که چېرته دا جايز شي چې د هر سړي چې د هر مذهب کومه مسئله خوښه وي په هغې دې عمل کوي نو بيا به يو سړی په يوه مسئله کې د يو مذهب د رخصت او په بله مسئله کې به د بل مذهب په رخصت پسې گرځي او د حلالو او حرامو، د جايزو او ناجايزو په منځ کې به په خپل خواهش يو طرف خوښوي. او دا سې کار کول د مکلفيت څخه خارجېدلو ته مفضي کېږي. په خلاف د عصرِ اول څخه، چې هلته به غير مجتهد په يوه مسئله کې د يو مجتهد او په بله مسئله کې به د بل مجتهد پسې تللو، ځکه چې هلته مذهبونه مُدَوّن نه وو او په هر مذهب کې به د ټولو حوادثو حل نه پيدا کېده، نو له دې امله په هر سړي لازمه ده چې د يو مُعيّن مذهب په غوره کولو کې کوښښ وکړي.

همدارنگه علامه شاطبي رحمه الله فرمايي: (ومتى خيرنـا المقلدين فى مـذاهب الائمـة لينتقـوا منهـا اطيبها عندهم لم يبق مرجعاً الا اتبـاع الشـهوات فى الاختيـار و هـذا منـاقض لمقصـد وضـع الشريعة.) [الموافقات / ج ٤ / ص ٨٢ / المسئلة الثالثة فى بيان ان الشريعة كلها ترجع الى اقـوال، واحـدة فى الفـروع / مكتبة محمد على صبيح ازهر].

هر کله چې مونږ مقلدينو ته اختيار ورکړو چې د هر مذهب څخه د خپلې خوښې مطابق مسئلې راټولې کړئ، نو بيا به د مسلمانانو له پاره بله مرجع پاتې نه شي، ماسوا د اتباع د خواهش نه او دا کار د مقصد د وضع د شريعت سره نقيض دی.

همدارنگه علامه شاطبی رحمه الله فرمايي چې: (وقد حكى ابن حزم الاجمـاع على ان ذلـك (اى تتبـع الرخص فى المذاهب) فسقٌ لا يحل) [ الموافقات / ج ٤ / ص ٨٤ / المسئلة الثالثة ]. يعنې ابن حزم رحمه الله په دې باندې اجماع رانقل کړې ده چې په مذهبونو کې آسانه آسانه مسئلې راټولول فسق او حرام دي.

علامه مناوي رحمه الله فرمايي : (ان مثل هذه الالتزامات لكـف النـاس عـن تتبـع الـرخص). [فـتح القدير/ ج ١/ ص ٤٠٣ / مكتبة نزار مصطفى باز]. يعني په خاصو خاصو مذهبونو باندې د پابندۍ لازمول ددې له پاره دي چې خلک د رخصتونو له لټولو څخه راېند کړو.

دريم جواب: دا دروغ دی چې ته وائې چې زه د څلورو وارو امامانو پسې ځم: که نه نو ته د هدايې يا د يو بل کتاب د يوې صفحې يا د دوه صفحو په لسو يا شل مسئلو کې څلور واړه مذاهب بيان کړه او بيا چې په کوم پسې ځې د هغه وجه ترجيح راته وښايه(ديده بايد).

## پوښتنه : دچا تقليد واجب دی؟

جواب: په غير واضحو مسايلو کې د مجتهد تقليد واجب دی.

مقلدين چې د مجتهد په بيان شوې مسئله عمل وکړي نو داسې دې نه وايي چې داد فلان امام خپله ذاتي رايه ده بلکې داسې دې وايي چې فلانی امام ته دالله ﷻ او د رسول الله ﷺ مراد داسې ښکاره شوی دی.
كَمَا يُقَالُ اَلْقِيَاسُ مُظْهِرٌ لَامُثْبِتٌ (٣٤)

يعنې په قياس باندې مسائل نه جوړېږي، بلکې په قرآن او سنت کې چې کوم مسائل پټ دي، نو داصولو شرعيه وو په مدد سره يې را ظاهروي، لکه کوهي ويستونکی او به نه راپيدا کوي، بلکه الله ﷻ چې کومې او به دزمکې لاندې پټې کړي دي هغه را ښکاره کوي.

اوس مجتهدينو ته شريعت ساز ويل داسې جهالت دي، لکه د کوهي وېستونکي ته چې خالق الماء ويل جهالت دی، لکه څرنگه چې د حساب د قواعدو څخه کوم جواب راوزي د پته د حساب جواب وايي، د حساب دان ذاتي رايه ورته نشي ويل کيدای. نو په فقهي کتابونو عمل دالله ﷻ او د رسول الله ﷺ د حکم منل دي ځکه ټول مجتهدين اعلان کوي چې مونږ اول فيصله په کتاب الله کوو که هلته پيدا نه شوه بيا يې په سنت د رسول الله ﷺ کوو که هلته پيدا نشوه بيا يې د صحابه وو رض په اجماع کوو که هلته پيدا نه شوه بيا پکې اجتهاد کوو ،کما قاله الامام أبو حنيفه رحمه الله (٣٥).

---

٣٤ - نورالانوار ص٢٢٨.

٣٥ - عقود الجمان ص٧٢و ص٧٦ تاريخ بغداد ج٣ص٣٣٩.

## پوښتنه: تقليد په چا واجب دی يعنې مقلد به څوك وي؟

جواب : علامه امدی فرمائی : (والعامي ومن ليس له اهلية الاجتهاد وان كان محصلاً لبعض العلـوم المعتبرة في الاجتهاد يلزمه اتباع قول المجتهد.(٣٦).

ترجمه:يعنی دعلومو دوينيه وسره نابلده اوهغه څوک چې علوم دينيه ئی حاصل کړئ وی لکن داجتهاد اهليت پکې نوی په هغه باندې دمجتهد تقليد واجب دی مفتی صدر الدين چې دنواب صديق حسن خان استاذ دی ليکي (وشخصی عامی بلکه عالم رانيز که بمرتبه اجتهاد نه رسيده باشد تقليديکه ازمجتهدان واجب است).تنبيه الضالين ص ۴۵.

### خلك په درې قسمه دي:

اول : مجتهدين چې قرآن کې ترېنه پـه اولوالالباب ،فقهـاء، اهـل استـنباط، او اولـو الابصـار سره تعبير کېږي. دوئ ته الله تعالى حکم کوي: فَـاعْتَبِرُوْا يَـااُولِي الْاَبْصَـارِ. ای دبصيرت خاوندانو قياس وکړئ ددې حکم مطابق په مجتهد باندې اجتهاد واجب دی،دوئ به دچا تقليد نه کوي.

دويـم : هغه خلک دي چې داجتهاد اهل نه دي هغوی ته الله ﷻ حکم کوي :فَاسْئَلُوْا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ. يعنې که تاسو نه پوهېږئ نو داهل ذکر (مجتهدينو )څخه پوښتنه وکړئ.

صاحب دتوضيح فرمايي: الاستفتاء طلـب الحكـم الشرعي هكـذا في كنزاللغات فيكـون مرادفـاً للتقليد في علم الاصول. نو تقليد به هغه څوک کوي چې څوک خپله قياس او اجتهاد نه شي کولی.

دريم قسم: هغه خلک دي چې نه پکې خپله داجتهاد اهليت شته او نه دمجتهدينو تقليد کوي ددوئ په باره کې الله ﷻ فرمائي: اُولٰٓئِكَ كَالْاَنْعَامِ بَلْ هُمْ اَضَلُّ داخلک دچارپايانو څخه هم بد تر دي، داقسم خلک به په قبر کې دقيامته پورې ملائکې په ګرزونو باندې وهي او ورته وايي به: (لَادَرَيْتَ وَلَاتَلَيْتَ ) (٣٧).

---

٣٦ - الاحكام فی اصول الاحكام ج ۴ ص ١٩٧ وكذلك فی اتحاف ذوی البصاير ص ٦٣٠.

٣٧ - بخاري ج١ص١٧٨.

نه خپله صاحب د درایت او پوهې وې او نه دې د کوم صاحب درایت او پوهې تقلید کړی دی، یعنې نه مجتهد وې او نه مقلد وې او چې کله د قبرونو څخه را اوچت شي الله جَلَّ جَلَالُهُ به یې سیده د جهنم په لور روان کړي، او دوئ به چیغې وهي: لَوْ كُنَّا نَسْمَعُ أَوْ نَعْقِلُ مَا كُنَّا فِيْ أَصْحٰبِ السَّعِيْرِ.

که مونږ (د عقل والا وو مجتهدینو خبره اوریدی (تقلید مو کولای) یا خپله صاحب د عقل (مجتهد) وی نو نن به په دوزخ کې نه سوزېدو څکه د نجات دوه لارې دي یوه دا چې انسان خپله مجتهد وي دوهمه دا چې د بل مجتهد مقلد وي. (تفسیر عزیزي او تفسیر حقاني)

## پوښتنه: د مجتهد او د مفتي شرائط کوم دي؟

جواب: د امام بخاري د استاد امام احمد څخه چا پوښتنه وکړه چې د مفتي شرائط کوم دي؟

هغه ورته وفرمایل (۱) اول د قرآن کریم پوره علم (۲) دوهم کم از کم د څلورو لاکهو احادیثو صحیحه وو علم (۳) دریم د صحابه وو او تابعینو په فتوو باندې پوره بصیرت په چا کې چې دا درې واړه صفات وي په خپل اجتهاد فتوی ورکولی شي والافلا (۳۸).

نو په چا کې چې دا صفات نه وي هغوئ دې د بل چا نه فتوی غواړي او بل د مجتهد تقلید دې کوي.

۱. امام ابو حفص رحمه الله فرمایي چې کله زه په جامعهٔ منصور کې مفتي مقرر شوم نو محدث ابو اسحاق راته وویل: چې آیا تا ته د څلورو لاکهو احادیثو شرط معلوم دی؟ ما ورته وویل چې هو، هغه راته وویل چې څلور لاکه احادیث دې یاد دي؟

۲. ما ورته وویل: چې نه، هغه راته وویل چې کله تا ته څلور لاکه احادیث ندي یاد نو بیا څرنګه فتوی ورکوې امام ابو حفص ورته وفرمایل چې زه په خپل قول فتوی نه ورکوم بلکې زه د داسې مجتهد په قول فتوی ورکوم چې د څلورو لاکهو نه یې هم زیات احادیث یاد وو یعنې د امام ابو حنیفه په قول فتوی ورکوم (۳۹).

۳. د امام بخاري استاذ الاستاذ او د امام احمد استاذ امام شافعي فرمایي:

---

۳۸ - اعلام الموقعین بحواله قواعد فی علوم الفقه ص۵

۳۹ - اعلام الموقعین ج۱ / ص ۴۵ فصل فی کلام الأیمة فی ادوات الفتیا.

هېڅ ته نه دي روا چې دالله ﷻ په دين کې فتوى ورکړي مګر دا چې دقرآن عالم وي، دناسخ او منسوخ دمحکم او متشابه پوره علم ورسره وي دمکي او مدني سورتونو نه پوره خبروي.

او داحاديثو په باره کې هم ددې تولو خبرو علم ورسره وي، ددې سره سره په علم لغت او شعر کې هم بصيرت تامه ولري دعلماؤ اختلاف او دلائل داختلاف ورته پوره معلوم وي چاسره چې دا علم نوي هيڅ کله ورته فتوي ورکول ندي روا (۴۰)

۴. دامام بخاري مشر استاذ امام مالک فرمايي: ماترهغې فتوې نه ورکولې ترڅو چې اويا شيوخو راته وويل چې ته دفتوو اهل يې (۴۱)

ددې اقوالو نه معلومېږي چې هرسړی مفتي او مجتهد نه شي کيدای فخرالاسلام بزدوي رحمه الله فرمايي: اما شرطه فان يحوي علم الکتاب بمعانيه وعلم السنة بطرقها ومتونها ووجوه معانيها، وان يعرف وجوه القياس (۴۲)

نن زمانه کې خو دبعضې جاهلانو څلور حديثه هم ندي ياد، او دعويې دومره غټه وي چې اجتهاد خو په ځای پرېږده دمجتهدينو څخه هم ځان لوړ حسابوي او په مجتهدينو تهمتونه لګوي (نعوذ بالله من الجهل المرکب) دداسې سړي لپاره په خپل قول فتوى ورکول حرام دي امام نووي رحمه الله فرمائي (قالوا فاما من ليس باهل للحکم فلا يحل له فان حکم فلا اجر له بل هواثم ولا ينفذ حکمه سواء وافق الحق ام لا لان اصابته اتفاقية). مسلم ج ۲/ ص ۷۶.

**پوښتنه: غير مقلدين خو وايي چې مونږ عالمان يو او تقليد دجاهلانو لپاره دی؟**

جواب: دوئ جاهلان مرکبان دي يعنې مجتهدين ندي او په دې هم خبر نه دي چې مونږ مجتهدين نه يو.

آنکس که نداند وندانداکه نداند | درجهل مرکب ابدالدهر بماند

دغير مقلدينو دشيخ الکل باني غير مقلديت دعلم دا حال وو چې (معيار الحق) په نوم کتاب يې ليکلی او يو څو لاندې خبرې يې ولولئ!

---

۴۰ - اعلام الموقعين ج۱ص. شروط الافتاء عند العلماء

۴۱ - اعلام الموقعين ج۱ ص شروط الافتاء عندالعلماء

۴۲ - کنزالاصول الي معرفة الاصول ۷۸۲.

۱. شاه ولی الله ته یې دیو کتاب نسبت کړی (القول السدید) چې دا هیڅ کله دشاه ولی الله کتاب ندی (معیار الحق ص ۵۳).

۲. دامام ابن خلکان ابن حجر عسقلاني ،امام نووي، علامه ابن خلکان په عباراتو کې یې دومره قطع اوبرید کړی دی، چې حیران به شې ورته مطلب یې صرف دادی چې امام صاحب دتابعیت نه وباسي حالانکه داټول دامام صاحب دتابعیت قائل دي.

۳. دمعیار الحق په (۲۶) صفحه کې لیکي چې حضرت قتادة سائل ته وویل چې امام بخاري امام احمد پوه کړو حالانکه امام بخاري دقتادة دوفات نه (۴۲) کاله وروسته پیدا شوی.

۴. په (ص ۲۱۹) کې یې دا الفاظ نقل کړي ( سَـارَمِيْلَيْنِ اَوْ ثَلاثَـة ) ترجمه کې یې لیکلي (دوتین کوس مسافت چلین) یعنې دوه درې کوسه مزل یې وکړو حالانکه یو کوس درې میله دی.

۵. یو راوي دی سلیمان بن مهران الاعمش نومېږي دصحاح سته وواجماعي شیخ دی ددې دپاره چې دا ضعیف ثابت کړي سلیمان بن ارقم یې ترینه جوړ کړی دی (معیار الحق ص ۲۲۵)

٦. دخالد بن حارث نه یې خالد بن مخلد جوړ کړیدی.

۷. دیو حدیث نه د انکار لپاره یې داسامه بن زید اللیثي څخه اسامه بن زید العدوي جوړ کړی دی.

افسوس په دې کم استعداد هم ځآنته مجتهد وایي ددوئ دشیخ الکل دا حال دی.

زما اختار دی غیر مقلدینو چې څومره کتابونه لیکلي دي په ټولو کې خیانت ،تحریف او ددروغو حوالې دي، صحیح ته ضعیف او ضعیف ته صحیح وایي.

کـه دد ېنـه خـالي کتاب ددوئ چـا را وښودلو زمـا لـه طرفـه ورتـه لـس زره دینـاره انعـام دی ،داګـز اودا میدان ،زمونږ په زمانه کې دغیر مقلدینو شیخ الکل امین الله پشاوري دفرج اوپونډیو فرق نشي کولی.

ده یو کتاب لیکلی دی په نامه د (التحقیق السدید فی مسئلة التقلید ) یعنې دتقلید حقیقت پدې کتاب کې یې په حنفي فقه (۱۳۳) اعتراضونه کړیدي،چې دهر اعتراض مطالعه یې دجهل او حماقت مظاهره ده، یوه ډېره خندونکې نمونه یې داده چې صاحب دهدایې فرمایي: چې فان صلت وربع ساقها مکشوف تعید الصلوة الخ ج ۱ص ۸۸. وفي بعض النسخ ص(۹۲).

يعنې که په مانځه کې د ښځې څلورمه حصه د پوندۍ ښکاره شوه د امام صاحب په نزد يې مونځ نه کېږي، او د امام يوسف په نيزد که اکثره پټه وه مونځ يې کېږي. هدايه: ج(۱) ص(۸۸) او وروسته ليکي چې والعورة الغليظة على هذا الاختلاف يعنې په عورة غليظة کې هم همدغه اختلاف دی چې د امام صاحب په مذهب که ربعه ښکاره شي مونځ ئې نه کېږي او د امام ابو يوسف صاحب په مذهب که اکثر پټ وو مونځ ئې کېږي او دی لامذهبه ليکلي دي چې په فقه کې راځي لکه هدايه ج(۱) ص(۹۲) چې د زنانه څلورمه حصه فرج او د امام ابو يوسف په نزد چې نيم فرج ښکاره شي مونځ يې کېږي. (التحقيق السديد ۱۲۳ مسئله ص ۲۴۲ دوهم چاپ و ۱۴۱ پنځم چاپ) نو امام صاحب پوندۍ او عورة غليظه کې تعيد الصلوة ويلي دي او دی لامذهبه فرج ذکر کړی دی او کېږي ئې ورسره ويلي دي.

(۲) د مشکوٰة يوه شرحه يې ليکلي ده په نامه د الحق الصريح په هغې کې يې د باب الايمان بالقدر د اتم نمبر حديث په تشريح کې دوهم جواب لاندې ليکلي دي چې (انبياء هَمْ کوي اوهَمْ زناده) نو پيغمبران زنا کوي (معاذالله).

په شرح الوقايه کښې عبارة داسې دی چې. الوضوء ليس بعبادة مقصودة ج ۱/ ص ۶۵. نو نفی قيد ته متوجه ده يعنې او دس عبادة دی خو غير مقصود دی او دې لامذهبه اعتراض کړی دی چې په شرح وقايه کې راځي چې او دس عبادت ندی. التحقيق السديد، ص ۲۰۷ دريم نمبر اعتراض نو دا جاهل پدې هم نه پوهيږي چې نفي قيد ته متوجه کېږي. (رحيم الله الحقاني التنجرهاري)

**پوښتنه : دتقليد څه حکم دی فرض دی که واجب دی که سنت دی اوکه مباح دی اوکه حرام دی او که مکروه دی؟**

**جواب:** مطلق تقليد واجب بالذات دی او شخصي تقليد واجب بالغير دی، په سنه (۱۳۲۵) کې د حرمينو علماؤ د ديوبند د علماؤ څخه يو څو سوالونه وکړل، په هغې کې اتم نمبر او نهم نمبر سوال او جواب دا وو:

**السوال:** په تمامو اصولو او فرعو کې د يو امام تقليد د ائمه اربعه وو څخه صحيح دی او کنه؟ که صحيح وي نو مستحب دی که واجب او تاسو د کوم امام مقلدين يي؟

بالفاظ صحيح ضرور ده مايه تحقيق السديد ۱۱ وتل

**الجواب**: پدې زمانه کې نهایت ضروري ده چې په څلورو امامانو کې د یو تقلید وشي بلکه واجبه ده، ځکه مونږ تجربه کړېده چې دائمه وو تقلید چا پرېښېدی دی او د خپل نفس او هوا تابع ګرځېدلي، انجام یې الحاد او زندیقیت شویدی (نعوذبالله منها).

له دې وجهې مونږ او زمونږ مشائخ په تمامو اصولو او فروعو کې د امام المسلمین ابو حنیفه ﷺ مقلدین یو، الله تعالی دې په همدې مذهب مونږ ته مرګ هم په نصیب کړي، او د همدې مذهب په پیروانو کې دې زمونږ حشر وکړي، امین (۴۳)

پدې باندې د دیو بند د څلېرویشتو متقدمینو علماؤ او وه دېرشو (۳۷) متاخرینو علماؤ دستخطونه دي، د دېنه وروسته پرې د حرمینو د مصر او د شام د علماؤ تصدیقات دي. د غیر مقلدینو پنج تن پاک هم په دې متفق دي.

نذیر حسین په معیار الحق باز دوم سنه (۱۳۲۹) هـ ص (۴۲) کې لیکي په عامي باندې مطلق تقلید واجب او تقلید شخصي مباح دی.

او مولوي محمد حسین بټالوي سنه (۱۳۳۸) هـ کې (اشاعة السنة) کې صفحه (۱۲٦) مولوي ثناء الله امر تسري (۱۹۸۴) (اخبار اهل حدیث) کې مولوي محمد ابراهیم سیالکوټي سنه (۱۹۵٦) کې تاریخ اهل حدیث کې صفحه (۱۲۵) او مولوي سید محمد داود غزنوي په سنه (۱۹٦۳) کې (داود غزنوي ص ۳۷۵) هم دا خبره لیکلې ده. لکن دلیونیانو په شان شرک او بدعت هم ورته وایي

## پوښتنه: د تقلید د تارکینو څه حکم دی؟

یعنې بعضې خلک ځانته غیر مقلدین وایي، د دوئ حکم څه دی، او غیر مقلد څه معنی ده؟

جواب: غیر مقلد د ېته وایي چې نه مجتهد وي او نه د بل چا مقلد وي کله مجتهد ته بد وایي، کله مقلد ته، لکه یو سړی چې نه امام وي او نه مقتدي وي، بلکې کله امام ته بد وایي او کله مقتدي ته.

حکم یې دا دی چې: غیر مقلدین ګمراهان دي او تعزیر یې ضروري دی.

---

۴۳ - المهند علی المفند، یعنې عقائد علماء اهل سنت دیوبند ص۴۳.

شاه اسحق فرمايي: كسيكه حقيقت مذاهب اربعه نداند انكار اتباع ايشان كند آن كس ضال است (۴۴).
يعني څوک چې د څلورو مذاهبو حقانيت نه مني او د دوئ د تقليد نه انكار كوي گمراه دی.

میا عبدالخالق صاحب شاگرد دشاه اسحق فرمايي: هرگز مقلد ايشان (مقلد ائمه اربعه) را هرگز بدعتي نخواهند گفت زيراكه تقليد ايشان تقليد حديث شريف است پس متبع حديث را بدعتي گفتن ضلال و موجب نكال است(۴۵).

يعني مقلدينو د مذاهبو اربعه وته بدعتيان مه وايئ! ځكه د دوئ تقليد د سنتو تقليد دی او په سنتو باندې عمل كونكي ته بدعتي ويل گمراه دی او تعزيري ضروري دی.

مفتي صدرالدين چې د نواب صديق حسن خان استاد دی فرمايي: كسيكه مذهب يكى از ائمه اختيار كند آن متبع سنت رسول ﷺ است، وشخصې عامي بلكې عالم رانيز كه بمرتبه اجتهاد نه رسيده باشد تقليد يكى از مجتهدان واجب است.

وبالفعل مذاهب اربعه از مجتهدين مشهور ومتواتر ومقبول ومدون ومنقول است، پس تقليد يكى از اين چهار ائمه اختيار بايد كرد، ومنكران حقيقت مذاهب اربعه وبدعت گويندان تقليد ضال ومضل اند وهم (أَضَلُّوْا كَثِيْرًا وَضَلُّوْا عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلِ). (٤٦) يعنې څوک چې په دې مذاهبو اربعه وو كې ديو مقلد وي هغه د سنت نبوي ﷺ تابعدار دی. نو په عام كس او غير مجتهد عالم باندې ديو مجتهد تقليد واجب دی.

اوبالفعل مذاهب اربعه د مجتهدينو مشهور متواتر ،مقبول اومدون اومتواتر دي، نو پكار دي چې پدوئ كې ديو تقليد اختيار شي، او څوک چې د مذاهبو اربعه وو د حقانيت نه منكر وي او مقلدينو ته بدعتي وايي نو داسې گمراه دی او نور خلک هم گمراه كوي، يعنې د ( ضَلُّوْا وَأَضَلُّوْا ) مصداق دی.

## پوښتنه: په مذاهبو اربعه وو كې كوم يو مذهب غوره دی؟

ځواب: د ټولو ايمه و خدمتونه پخپل ځای د احترام قابل دي او منلې شوي دي لكن د امام صاحب فقه پدوی ټولو باندې راجحه ده.

---

٤٤ - تنبيه الضالين ص٣٦او ٣٧.

٤٥ - مسائل ص٩٣ مسئله٦٢.

٤٦ - تنبيه الضالين ص٤٥.

۱- حضرت امام صاحب ابو حنيفه رحمه الله رؤية و رواية تابعي دی په خلاف د نورو ايمه و څخه چې هغوی تابعين ندي،

مشهور، مخکنی او ثقه مؤرخ امام ابو الفرج محمد بن اسحاق بن نديم المتوفي ۳۸۵هـ د امام صاحب په باره کې فرمايي چې: وكان من التابعين لقي عدة من الصحابة. [فهرست: ص ۲۹۸ من تصنيف ۳۷۷هق]

امام ابو حنيفة رحمه الله تابعي دی او ډېرو صحابه وو سره يې ملاقات شوی دی، ملا علي قاري رحمه الله فرمايي چې دا خو يقيني ثابت دي چې امام صاحب بعض صحابه رضي الله عنهم ليدلي دي، لکن اختلاف پدې کې دی چې امام صاحب د صحابه وو رضي الله عنهم څخه احاديث روايت کړي دي او کنه؟ او د اعتماد قابله خبره داده چې روايت کړي يې دي، وروسته ليکي چې امام صاحب ابو حنيفة رحمه الله غټ تابعي دی لکه څرنګه چې غټو غټو علماوو پدې تصريح کړې ده.

وقد ثبت رؤيته لبعض الصحابة، واختلف في رؤيته عنهم والمعتمد ثبوتها... (الى قوله) فهو من التابعين الاعلام كما صرّح به العلماء الاعيان. [ذيل الجواهر ج۲/ص ٤٥٢].

د امام صاحب پيدا ايښت په اتيايمه هجرې کې شوی دی. [جامع المسانيد ج۱ص۲۵، تذكرة الحفاظ ج۱/ ص ۱۵۸]. [تهذيب التهذيب ج۱۰/ ص ۴۴۹]، [الجواهر المضية ج۱/ ص ۲۷].

او ډېر صحابه رضي الله عنهم د اتيايمې هجرې څخه وروسته وفات شوي دي، د حضرت واثلة بن اثقع په پنځه اتيايمه هجرې کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۱/ ص ۱۰۱].

حضرت انس بن مالک رضي الله عنه په ۹۳هق کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۱/ ص ۳۷۹]. [تاريخ صغير للبخاري ص ۱۰۱]، طبقات ابن سعد ج۷/ ص ۱۶].

حضرت محمود بن لبيد په ۹۶هـ کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج ۱۰/ ص ۶۶].

حضرت محمود بن الربيع ۹۹هـ کې وفات شوی دی. تهذيب التهذيب ج۱۰/ ص ۶۳].

حضرت هرماس بن زياد الباهلي سره په يو سلو دوهمه کې د حضرت عکرمة بن عمار ملاقات شوی دی نو دده وفات د يو سلو دوهمې څخه وروسته شو.

حضرت ابو طفيل عامر بن واثلة په ۱۱۰ هق کې وفات شوی دی. [تهذيب التهذيب ج۵/ ص ۸۲].

چې په دغه وخت کې امام صاحب د ديرشو کالو وو، دا مونږ د اختصار سره نيم درجن صحابه رضي الله عنهم وليکل.

حضرت ابن حجر رحمه الله فرمايي چې (رأى أنساً رضي الله عنه). [تهذيب التهذيب ج۱۰/ ص۴۴۹] يعني امام ابو حنيفة رحمه الله څو څو ځله حضرت أنس رضي الله عنه ليدلى وو، او علامه ذهبي فرمايي چې: رأى أنس بن مالک رضي الله عنه غير مرة لما قدم عليهم الكوفة. [تذكرة ج۱/ ص۱۵۸] يعني امام ابو حنيفة رحمه الله څو څو ځله حضرت أنس وليدلو چې كله يې كوفې ته تشريف راوړو.

علامه ابن سعد رحمه الله، امام دار قطني رحمه الله، خطيب بغدادي رحمه الله، امام نووي رحمه الله، امام ابن عدي رحمه الله، علامه ذهبي رحمه الله، علامه سمعاني رحمه الله، علامه عراقي رحمه الله، حافظ ابن حجر رحمه الله، او امام سخاوي رحمه الله وغيرهم د امام ابو حنيفة رحمه الله په تابعي والي باندې متفق دي. وګورئ!

[بغدادي ج۱۳/ ص۳۲٤]، [تذكرة الموضوعات ص۱۱۱] و [قانون الموضوعات ص ۲۳٦]، [جامع بيان العلم ج۱/ ص٤٥]. حافظ ابن كثير رحمه الله فرمايي چې: و ذكر بعضهم أنه روى عن سبعةٍ من الصحابة. [البداية والنهاية ج۱۰ ص۱۰۷].

د نمونې په شكل يو څو هغه روايات وګورئ چې امام صاحب رحمه الله د صحابه رضي څخه روايت كړي دي. ابويوسف رحمه الله عن أبي حنيفة رحمه الله أنه قال: سمعت أنس بن مالک رضي الله عنه يقول: سمعت رسول الله ﷺ يقول: طلب العلم فريضة على كل مسلم.

وعن أبي داؤد الطيالسي عن أبى حنيفة رحمه الله أنه قال: ولدت سنة ثمانين، وقدم عبدالله بن أنيس الكوفة سنة أربع وتسعين وسمعت منه وأنا ابن أربع عشرة سنة يقول: قال رسول الله ﷺ: حبک للشيء يعمي ويصم.

ابويوسف عن ابي حنيفة رحمه الله قال: ولدت سنة ثمانين وحججت مع أبي سنة ستة وتسعين وأنا ابن ستة عشر سنة فلما دخلت المسجد الحرام رأيت حلقة قلت لأبي حلقة: من هذا؟ قال حلقة: عبدالله بن الجزء الزبيدى صاحب رسول الله ﷺ فتقدمت فسمعته يقول سمعت رسول الله ﷺ يقول: و من تفقه في دين الله كفاه الله همه ورزقه من حيث لا يحتسب.

ابويوسف عن أبي حنيفة عن أنس بن مالک رضي الله عنه عن النبي عليه السلام قال: الدال على الخير كفاعله والله يحب اغاثة اللهفان.

عن أبي سعيد عن أبي حنيفة رحمه الله أنه قال: سمعت واثلة بن الاسقع رضي الله عنه يقول: سـمعت رسـول الله ﷺ يقول: لاتظهرن شماتة لأخيک فيعافيه الله ويبتليک.

يحيى بن معين عن أبي حنيفة رحمه الله عن عايشة بنت عجرة رضي الله عنها قالت: قال رسول الله ﷺ أكثر جنـد الله في الأرض الجراد لا أكله ولا أحرمه. وګوره: [جامع المسانيد ج١/ص٨٧ تر ص٩٨ پورې].

(٢) د حضرت امام صاحب فقهي کمال يو منلى شوى حقيقت دى، حضرت امام الشافعي رحمه الله فرمايي چې: الناس في الفقه عيال على أبي حنيفة رحمه الله. [تذكرة ج١/ ص١٥٩].

علامـه ذهبي ليکي چې: الامـام الأعظم، فقيـه العراق، امـام، متـورع، عـالم، عـامل، فقيـه، متقي وكبير الشان.

(٣) د امام صاحب د فقهي اصول او ضوابط د داسې يوې شورى په ذريعه باندې مرتب شوي او مدون شوي وو چې رئيس يې امام ابوحنيفة رحمه الله وو، دوى به د پوره بحث او مناظرې څخه وروسته مسئله ليکله.

علامه خطيب بغدادي رحمه الله فرمايي چې: كان أصحاب أبي حنيفة رحمه الله الذين يذكرونه ابويوسف، و زفر، و داؤد الطائي، واسد بن عمرو، و عافية الأودي، والقاسم بن معن، وعلي بن مسهر، ومندل، وحبان ابنا علي، وكانوا يخوضون في المسئلة فإن لم يحضر عافية قال أبوحنيفة رحمه الله: لا ترفعوا المسئلة حتى يحضر عافية فإذا حضر عافية، فإن وافقهم قال أبوحنيفة: أثبتوها، فإن لم يوافقهم قال أبوحنيفة لاتثبتوها. [تاريخ بغـداد ج١٢/ ص١٠٨]. د امام صاحب بعضې هغه اراکين د شورى چې امام صاحب به ورسره د مسايلو مذاکره کوله دادي:

ابويوسف، زفر، داؤد الطايي، اسد بن عمرو، عافيـة، قاسم، علي، مندل، حبان، نو کله به چې په يوه مسئله بحث وشو نو که عافيه به پکې شريک وو، امام صاحب به وفرمايل چې: دا مسئله وليکئ، او که عافيه به نه وو شريک نو امام صاحب به وفرمايل چې: دا مه ليکئ ترڅو عافيه نوي راغلى، نو عافيه به چې کله راغلو او دوى سره به موافق شو نو امام صاحب به وفرمايل چې: اوس يې وليکئ او که موافق به نه شو نو امام صاحب به فرمايل چې: دا مسئله مه ليکئ.

امام صدر الأيمه ليکي چې: فوضع أبوحنيفة رحمه الله مذهبه شورى بينهم ولم يستبد فيه بنفسه دونهم، اجتهاداً منه في الدين، ومبالغةً في النصيحة لله ورسوله والمؤمنين، فكان يلـقى مسـئلة مسـئلة ويسـمع مـا

عندهم، ويقول ما عنده ويناظرهم شهراً أو أكثر من ذلک حتى يستقر أحد الأقوال فيها ثم يثبتها أبويوسف رحمه الله في الأصول حتى أثبت الأصول كلها. [مناقب موفق ج۲/ ص ۱۳۳].

امام صاحب خپل مذهب د شورى په طريقه جوړ کړو او د احتياط او د الله جل جلاله د دين او د مؤمنانو د خير خواهى له وجې به يې هيڅ مسئله د مشورې څخه بغير نه ليکله نو په يوه مسئله به يې مياشت او څه د پاسه مياشت مشوره او مناظره کوله، ترڅو چې په يوه رايه به متفق راغلو، نو امام ابويوسف رحمه الله به هغه په اصولو کې وليکله تر دې چې ټول اصول منضبط شول.

او که امام ابويوسف رحمه الله به عجله وکړه نو امام صاحب ورته فرمايل چې: لا تكتب كل ما تسمع مني، فأني قد أرى الرأي اليوم وأتركه غداً وأرى الرأي غداً وأتركه في غده. [مقدمة نصب الرأيه ص ۳۱].

زما څخه هر اورېدلې خبره مه ليکه ځکه چې زه نن يوه خبره کوم او سبا ته يې پرېږدم او سبا يوه خبره کوم او بل سبا ته يې پرېږدم.

د امام بخاري رحمه الله استاذ امام عبد الله بن المبارک فرمايي چې: ددې شورى مجلس ته يوه اهمه مسئله پيش شوه، فخاضوا فيها ثلاثة أيام بالغداة والعشي. [مناقب موفق ج۲ ص۵۴].

نو ددې مجلس پکې درې شوا روزه غور او خوض وکړو - إذا وقعت لهم مسئلة يديرونها حتى يضيئونها، [مناقب كردي ج۲/ ص۳]. کله به چې دې مجلس ته مسئله مخې ته راغله نو پوره پوره به يې تاو راتاو کړه تر دې چې ښه به واضحه شوه.

(۴) د امام صاحب فقهې ته الله جل جلاله عام مقبوليت وربښلى دى لکه څرنګه چې امير شکيب ارسلان فرمايي: مشهور مؤرخ ابن نديم فرمايي چې: فقه اكبر، كتاب رسالته الى البستي، كتاب العالم والمتعلم او كتاب الرد على القدرية د امام صاحب تصنيفات دي بيا مخکې ليکي چې:

والعلم براً وبحراً، شرقاً وغرباً، بعداً وقرباً تدوينه رضي الله عنه. [الفهرست ص ۲۹۹]. په وچه او په سمندر کې، په مشرق او په مغرب کې، نزدې او لرې ټول علم د امام صاحب تدوين دى.

(۵) د امام صاحب اجتهاد ډېر دقيق وو هيڅ باريک اړخ به هم ترينه نه پاتې کېدو، لکه څرنګه چې علامه سبكي فرمايي چې: فقهه دقيق. [طبقات الشافعية الكبرى ج۲/ ص۱۷۴].

(۶) وروسته به راشي چې ددنيا د ټولو محدثينو سند د امام صاحب په شاګردانو تيريږي او لويو لويو محدثينو به د امام صاحب د مذهب مطابق فتوی ورکوله لکه عبدالله بن المبارک، وكيع بن الجراح، يحيى بن سعيد القطان، يحيى بن معين، يحيى بن زكريا.

(۷) امام اعظم رحمه الله د هرچا څخه مخکې د امت د سهولت لپاره د کتابونو او بابونو ضرورت محسوس کړ او ددې لپاره يې بهترين بنياد کيښودلو.

صدر الأيمة رحمه الله ليکي چې: و ابوحنيفة رحمه الله اول من دون علم هذه الشريعة ولم يسقه أحدٌ ممن قبله. [مناقب موفق ج۲/ ص۱۳۶]. امام ابو حنيفة رحمه الله د ټولو څخه مخکې د شريعت تدوين وکړو، دده څخه مخکې هيچا هم داسې تدوين نه وو کړی.

۸: شاه ولي الله رحمه الله په خپل مکاشفات کې ليکي چې عرفني رسول الله صلى الله عليه وسلم ان فى المذهب الحنفى طريقة انيقة هى اوفق الطرق بالسنة المعروفة التى جمعت و نقحت فى زمان البخارى و اصحابه.(فيوض الحرمين ص ٤٨)

يعنې شاه ولي الله رحمه الله فرمايي چې ماته خپله پيغمبر عليه السلام دا خبره معلومه کړه چې په حنفي مذهب کې داسې عمده طريقه ده چې د هغه سنت نبوي سره زياته موافقه ده کومه چې د امام بخاري په زمانه کې راجمع شوې ده.

## پوښتنه: غير مقلدين له کوم وخت څخه شروع شو؟

تاسو مخکې وويل چې دصحابه رضي الله عنهم څخه شروع تر ائمه اربعه وو پورې ټول خلک مقلدين وو، نو غير مقلدين دکوم وقت څخه شروع شو؟

جواب: بعضې وايي چې دوئ هغه وخت کې راپيدا شول چې کله موجوده سعودي حکومت په حرمين شريفين باندې قابض شو چې زياته مرسته ورسره إبن عبد الوهاب کړې وه.

له دې وجهې يې دوئ ته وهابيان ويلې، لېکن دا خبره غلطه ده، ځکه چې کله دسعودي کورنۍ دامام عبدالله بن عبدالوهاب په مرسته په حرمينو قابضه شوه په مکه مکرمه کې امام عبدالله بن عبدالوهاب اعلان وکړو، چې مونږ په فروعو کې دامام احمد بن حنبل په مذهب يو چونکه دامام ابو حنيفه، امام مالک، امام شافعي او امام احمد بن حنبل رحمهم الله مذهبونه منضبط دي. له دې وجهې ددې مذهبونو په پيروانو مو ځ

اعتراض نه کوو، ددې څلورو مذهبونو نه ماسوی مثلا زیدیه، روافض، امامیه، ددوئ مذاهب منضبط نه دي له دې وجهې دا مونږ نه منو، مونږ به خلک مجبور کړو چې په دې څلورو امامانو کې دیو تقلید وکړي. (۴۷).

دمصرډاکټر محمد البهی دوهابي تحریک په بیان کې لیکي چې په اتمه صدی کې محمد بن عبدالوهاب ددې تحریک بنیاد په حنبلي مذهب کیښودلو. الحرکة الوهابیه ص ۳۱.

د(۱۹۱۱)کال نه مخکې دوئ په پاکستان، هندوستان، افغانستان او نور عالم اسلام کې بالکل قابل ذکر نه وو، په (۱۹۱۱) ع کې په یوه مردم شماري کې دمسلمانانو تعداد داسې بیان شوی وو:

۱. اثناعشري یو کروړ او وه دېرش لاکه

۲. زیدي دېرش لاکه

۳. حنبلي دېرش لاکه

٤. مالکي یو کروړ.

۵. شافعي لس کروړه

٦. حنفي د اوه دېرش (۳۷) کروړو نه زیات (۴۸)

نو په (۱۹۱۱) ع کې ټول اهل سنت والجماعت د اته څلوېښت کروړه او دېرش لاکهو نه زیات وو، او غیر مقلدین بالکل قابل ذکر نه وو.

دغیر مقلدینو مشهور عالم او مؤرخ شاه جهان پوري (۱۹۰۰) ع کې په خپل کتاب الارشاد کې لیکي:

دیوڅه وخت نه راپه دېخوا یو څوکسان راپیدا شویدي چې خلک ورسره بالکل نا اشنا دي، دوئ ځانونو ته اهلحدیث، محمدي یا مؤحدین وایي خو خلک ورته وهابیان، لامذهبه، او غیر مقلدین وایي (۴۹).

ددېنه معلومېږي چې دا یوه بدعتي او نوې فرقه ده د اسلام دتاریخ نه هم دا معلومېږي ځکه چې په اسلامي مکتبو کې، طبقات حنفیه، طبقات مالکیه، طبقات شافعیه، طبقات حنبلیه، کتابونه شته دي چې ددوئ دمحدثینو فقهاؤ، مفسرینو سلاطینو او نورو علمي طبقاتو ذکر په کې شویدی.

٤٧ - الهدیة السنیة مؤلفه علامه سلیمان بن سحمان، اردو ترجمه، تحفه وهابیه اسماعیل غزنوي ص٦١.

٤٨ - انسائکلو پیډیا آف اسلام

٤٩ - الارشاد الی سبیل الرشاد ص١٣.

لیکن دطبقات غیر مقلدین هیڅ کتاب نشته بلکه دغیر مقلدینو په نوم یوه رساله هم په کې نشته، دمذاهبو اربعه وو کتابونه دحدیثو، دتفسیر، دفقهي اصول، اصول حدیث، اصول تفسیر، اسماء الرجال، هرځای کې شته لکن دغیر مقلدینو یوه رساله هم داسې نشته چې په هندوستان کې دانګریزي دورې نه مخکې تاریخ ولري.

خلاصه دا چې رسول الله ﷺ دفتح دهند وړاند وینه ورکړه (۵۰)

داپیش ګویي او وړاند وینه الله جَلَّ جَلَالُهُ داحنافو په لاسو پوره کېده احنافو هندوستان فتح کړو.

په (۹۳) هـ کې اسلام هندوستان ته داحنافو مجاهدینو په لاس راغلو تر (۱۲۹۳) پورې دغیر مقلدینو کتابونه او مدرسې نه وې.

بیا چې کله دانګریزانو منحوس قدمونه هندوستان ته داخل شو، او داحنافو اسلامي حکومت یې ختم کړو احناف چه (۱۹۵۷) کې د انګریزانو په خلاف په جهاد کې مصروف وو، انګریزانو یو طرف ته په زرګونو احنافو علماؤ ته اعدام ورکولو بل طرف ته یې دمذهب د ازادي اعلان وکړو، ملکې وکټورې یې اشتهارونه خواره کړه چې تاسو دحنفي مذهب نه آزاد یي لامذهب او غیر مقلد جوړ شئ نو دبرطانوي حکومت په خیر خواهانو کې به شمار شئ، او که پخپل حنفي مذهب ټینګ پاتې شئ نو دسرکار برطانیه نه به باغي شمار شئ، مقصد یې وو (لړاو او رحکومت کرو) (۵۱). (مسلمانان خپل مینځ کې وجنګوه او حکومت وکړه).

ددې اعلان نه وروسته یو خودسره او متعصبه فرقه راپیدا شوه ددې فرقې اول قدم په سلفو په بدګماني وه، او انتهاء یې دسلفو پر خلاف بد زباني وه، دوئ هر یو فرد ددې حدیث مصداق دي چې (لَعَنَ آخِرُ الأُمَّةِ أَوَّلَهَا) ددې فرقې هر فرد ځان دائمه وو بلکې دصحابه وو نه بهتر شماري.

دحضرت ام المؤمنین عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په باره کې ګستاخ مولوي عبدالحق بنارسي (باني غیر مقلدیت) ښکاره اعلان کوي چې (حضرت عائشه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره جنګېدلې که توبه یې نه وي وېستلې نو مرتده مره شوې) نعوذ بالله من ذلک.

---

۵۰ - مسند احمدج۵ص۱۷۸، ج۲ص۲۲۹،ج۲ص۳۶۹،نسائي کې باب دي باب غزووة الهند.

۵۱ - جنګ ازادي ص۴۰۹

بل ځای کې لیکي دصحابه وو ﷺ علم زما دعلم نه کم دی ځکه دهغوئ هریو پنځه پنځه حدیثونه یاد وو او ماته ددې ټولو احادیث یاد دي(۵۲).

مشهور غیر مقلد نواب صدیق حسن خان فرمایي: په دې زمانه کې یوه ریاکاره او شهرت پسنده فرقه پیداشوې ده چې دټولو نقصاناتو نوباوجود دقرآن او دحدیثو دعلم دعویدار دي حالانکه دقرآن او حدیث سره ددې فرقې هیڅ تعلق نشته.

داخلک دعلوم آلیه وو او عالیه وو دواړو نه خالي دي (۵۳) داخلک داسلام دحلاوت نه بالکل خالي الذهن دي دمسلمانانو په خلاف ډېرتنګ زړي او سخت زړي دي (۵۴) يَقُوْلُوْنَ هُمْ خَيْرُ الْبَرِيَّةِ وَهُمْ شَرُّالْبَرِيَّةِ (۵۵) په الله قسم چې داخلک ځانته خالص موحدین وایي او نورو مسلمانانو ته بدعتي او مشرک وایي حالانکه داخلک دټولو نه زیات غالي او ددین په باره کې غټ متعصب دي (۵۶) فَمَا هَذَا دِيْنٌ اِنْ هَذَا الا فِتْنَةٌ فِيْ الأَرْضِ وَفَسَادٌ كَبِيْرٌ (۵۷)

نواب صدیق حسن خان په (۱۳۱۲) هـ کې کتاب لیکلی په هغه کې لیکي: خلاصه دا چې دکوم وخت نه هندوستان ته اسلام راغلی دی نو چونکه اکثر خلک دبادشاهانو طریقې خوښوي نو دابتداء داسلام نه تراوسه داخلک حنفیان وو، دلته دهمدې مذهب مفتیان قاضیان او حاکمان وو تردې چې ددې خلکو یو غټ جماعت یوځای شو او فتاوی عالمګیري یې ولیکله (۵۸)

بیا لیکي: چا او ربدلي دي چې یو متبع قرآن او سنت دانګریز سرکار سره بې وفایې کړېده یا بغاوت ته آماده شوي دي. کوم کسان چې غدار او انګریزي حاکمانو سره عناد لري ټول مقلدین دحنفي مذهب دي (۵۹)

---

۵۲ - کشف الحجاب ص ۴۲. قاري عبدالرحمن پانی پتي شاګرد شاه اسحق رحمه الله

۵۳ - الحطه ص ۱۵۳.

۵٤ - الحطه ص ۱۵۱.

۵۵ - الحطه ص ۱۵۴.

۵٦ - الحطه ص ۱۵٦.

۵۷ - الحطه ص ۱۵٦.

۵۸ - ترجان وهابیه ص۱۰ اوص۱۱.

۵۹ - ترجان وهابیه ص۲۵.

